په پښتو ژبه او پښتون اولس
عاشق حبیب الله رفیع صاحب ته
په درنه مینه
صاحب شاه صابر
۱۲-۱۱-۹۵

# پښتو ادب کښې تحقیق او تنقید



صاحب شاه صابر

د کتاب نوم ـــــــــ په پښتو ادب کښې تحقيق او تنقيد
ليکوال ـــــــــ صاحب شاه صابر
کتابت ـــــــــ لطف الله
د چاپ ځائے ـــــــــ
د چاپ کال ـــــــــ سنه ۱۹۹۵ء
د چاپ شمير ـــــــــ ۱۰۰۰
اهتمام ـــــــــ عثمان اولس يار

خوروونکي
پښتو ادبي جرګه ملاکنډ

# وړومبۍ برخه

---

د تحقیق او تنقید لارې ډېرې اوږدې او پیچیده هم وي او ډېرې ځنډونې او زړه‌ښنې هم وي - د ژوند ژواک، علم او ادراک تجربې او تجزیې په دغو لارو د سوونو او زرګونو کالو د قافلو پلونه لټول او په دغو پلونو د فکر و نظر د خاوندانو رائې، تحقیق او تنقید ته په تنقیدي نظر کتل او بیا پرې خپل فکر و نظر وړاندې کول ګران کار دے دومره ګران چې اظهار ئې په لفظونو کښې نهٔ شي کیدے - څو چې د یو عمر د پوهنې تجربې سره د دې عمل نه تېر نهٔ شي خصوصًا د عملي تنقید تقاضې پوره کول خو داسې دي لکه د سوونو او زرګونو کلونو د عقایدو په آباده بناریه کښې چې څوک د نوې تجربې او انکشاف دهماکه کوي - تنقید چې په څهٔ نهٔ څهٔ شکل کښې د مختلفو نظریاتو نه د پیدا شوې اصولو او روایاتو بنیادونه هم لړزي - او په دغه بنیادونو د عقیدو ترحده رسیدلي لوړ لوړ دیوالونه هم - دغه دیوالونه د بیخه غورزول خو د هیچا د وس خبره نهٔ ده خو کهٔ څوک پرې د علم و ادراک د رڼا نوې رنګ خپرول غواړي نو دا هم هر هغه څوک کولې شي چې د فکر و نظر زور هم لري او د مطالعې او مشاهدې بلاشته مني هم - په اصل کښې انسان چې څومره ماضي پرست دے دومره جدت پسند هم دے - خو پښتون کهٔ هر څو د نوې د علم و ادراک په لمن کښې د شعور اخستو د پاره مجبور

دے. بیاهم دي دخپل ثقافت او نفسیاتو له مخه د نورو ټولنیزو انسانانو
نه یو "بیلتون" یا انفرادیت لري. د دغه انفرادیت په وجه مونږ
دیٔلي شو چې دے ماضي پرست زیات دے او جدت پسند کم واقع شوے
دے او دا د پښتون المیه هم ده چې دې یو داسې لنډ پارے روایت پسند
دے چې نهٔ د دومره اوږد ماضی سره د روابطو په حق کښې دے. او نهٔ یې غوږ نهٔ
دومره د جدیدو تجربو او انکشافاتو سره بلد کړي دي. چې کښې څهٔ نوې
تجربه به اووینې یا څهٔ نوې انکشاف بهٔ وادرې او پهٔ دې به حیران نهٔ
شي او شک بهٔ پرې اونهٔ کړي - پښتون پهٔ اصل کښې دخپلو عقائدو سره
دمینې په دریغه عقیدت دخپلو "حالاتو" او دخپل ذات او قامی عرفان نه
شوکولي او بیګانه کړي څه چې بې نیازه کړې دي -
دے دخپل انساني او قامي نوعي پهٔ زړګونو کالو تاریخ ویاړهم کوي.
خو خپل د زړګونو کالو تهذیب، ثقافت او تاریخ ته د کړکي په نظرهم ګوري.
او دغه ژوند ژواک او ماضي د جهل د دور یادګارونه هم ګڼي - دې عمل
دے په اجتماعي دول، ذهني طور شنډ کړے او بدني طور شل ګوډ کړے دے.
ځکه نو یو طرفته دخپل ماضي نه شرمیږي او بل طرفته جدیدو افکارو
او نظریاتو ته سترګې نهٔ شي غړولے - زمونږ پهٔ ټولنه کښې د هیچنې
غوندې سخت عمل شوید ے نو د جرنډې مخالفت موکړید ے - دغسې کهٔ
د "یوې" پهٔ ځائې ټریکټر راغلی دی کهٔ دبنې پهٔ ځائې بوټ راغلی
دے - کهٔ د پروني په ځائې برقع راغلې ده - مونږ د هرنوي څیز
مخالفت کړید ے - دا بیله خبره ده چې د ژوند پهٔ یوه مرحله کښې مو
د هر نوي څیز نه بنهٔ پهٔ خلاص مټ استفاده کړیده -

داعمل په مونږ دا خبره واضحه کوي چې مونږ په مجموعي دول د محنت په کور کښې تخليقي توان بائيلي دي او په تعليمي سطح موتل مفعولي قسم رول لوبولې دي. په دغسې تولنه کښې او په دغسې حالاتو کښې که يو طرفته د محقق او نقاد رويه لرل يا پيدا کول گران کار دے. نو بل طرفته په خلقو کښې دغه رويه عام کول هم د اوسپنې نينې چيچل دي. په دې لاړو کښې هر کارچې دلرې نه اسان ښکارې د کولو په وخت کښې ډېر گران محسوس کيږي خو ملگري صابر يولوستي روڼلي شوي باصلاحيته او محنتي ليکونکي دے. هرڅو که دده د تحقيق او تنقيد تجربه نوې نه ده خو د "عملي تنقيد" په وخت به دې د موجوده روايا تو عقائدو او نظرياتو او دهغې نه د پيدا شوو نفسياتو د پيچيدگيو او الجهنونو نه ضرور تير شوې وي او دخپل ماحول او چاپېرچل د ننه به يې د پېژندگلوټ. يارئ دوستئ تابې پت او مروت په گرفت کښې ګمان ضرور محسوس کړې وي.

خو دې هرڅه باوجود بيا هم د ښاغلي صابر ددغې اغاز او تجربې جرأت د ستائينې وړ دے. ملگري صابرچې کوم نکات د قلم لاندې راوستي دي او بحث ته يې سم کړي دي. دهغې دپاره هغه بنه ډېره مطالعه کړېده. هرڅو که ورسره د اتفاق او اختلاف بنه ډېر گنجائش شته خو دغه کار يې د ستائينې وړ دے. چې مونږ ته يې ډېرگران څيزونه د غور او فکر کولو دپاره اسان کړي دي. ملگري صابر زمونږ توجه داسې مسئلو ته راکړوې ده کومې چې زمونږ د ژوند ژواک او علم وادراک بنيادونه دي. مونږ د ملگري صابر ددغه ليک په ذريعه نه يوا ځې دخپلو پښتنو

لیکوالو د تحقیق مطالعه کولے شو بلکې د عالمي مفکرانو د نظریاتي او عملي تنقید د فکر انګیزو رویو نه هم استفاده کولے شو. ملګري صابر که هر څو د تنقید د دوارو لارو دپاره د عالمي مفکرینو د افکارو نه اثر اخلي خو د خپلې ټولنې کره وړه او ضرورتونه هم په نظر کښې لري - او هره خبره او هره نکته چې راپورته کوي نو په زړه کښې یې د خپلې ټولنې د علم و ادب د روزنې او پالنې او پرمخ تګ ارمان په ټوپونو وي او غالبًا هم دغه نکته ده چې ملګري صابر یې په دې مجبور کړې دے. چې خپله مطالعه او د هغې نچوړ خلقو ته اوسپاري او هم په دغه ذریعه په خپل ټولنیز ژوند کښې د علم و ادراک دپاره خلق تیار کړي. چې هم دغه یوازینۍ لار ده چې قامونه او اولسونه په دې لار د ترقۍ بام ته رسي.

که څوک د ملګري صابر د انداز نوې او نه کښي نو روایتي به هم ورته او نه وائي او که څوک یې د ومره هم اوکښي نو دا به ددهٔ کمال هم وي او کامیابي هم.

منم چې د خپلې موضوع دپاره چې ملګري صابر څومره ډېره تیاري کړې ده. د هغې نه په نتائجو اخستو کښې به ورسره شاید څوک اختلاف اولري چې اختلاف پخپله د تحقیق او تنقید یا د علم او ادراک سرچینه ده. نو د دې باوجود هم ملګري صابر په مونږ احسان کړي دے. چې مونږ ته یې ډېر مشکل موضوعات، مشکلے نکتے او مشکل بحث ډېر اسان کړې دے. چې مونږ نه یوازې د هغه سره د هغهٔ په مطالعه کښې شریکېدې شو بلکې ډېر څهٔ ترې زده کولے هم شو.

ددې کتاب د مطالعې نه پس ددې خبرې بلا امکانات شته چې مونږ
د په خپل تحقیق او تنقید کښې نوي سوال جواب ته هم نوې لارې پرانیزو.
بائد چې مونږ ددې کتاب د مطالعې په رڼا کښې د تنقید د روایت د نوي سر
جاج واخلو چې د "مجهلو" او بې "معنې" بحثونو او ټیکونه نه ځان ژغورلو ته
ځانونه بچ کړو ولې خپل خلق او خپل ټیکوالان د خپلې تولنې د نوو ضرورتونو
او غوښتنو د پاره او پاره او په دغسې کولو کښې به د ملګري صابر دا کتاب
د بنیاد کار او کړي. ځکه چې زمونږ د علم وادراک تقاضې یوازې په ستائنې
ټیکونو نه پوره کیږي. مونږ هم یو قام قبیله لرو بائد چې د یو بل د
نادانئ د احترام سره سره د رائې د احترام چل هم زده کړو. هسې نه
چې د موجوده روایت برقرار ساتلو په غم کښې او د یارئ دوستئ او
خوشامندو په بیابان کښې رانه دغه شته چینې هم اوچې شي. او هر
تحقیق مو د نقل نقل او د سیورې سیورې شي. دې هر څه ته فکر او نظر
راګرځول که د نن وخت یوازینې ضرورت دے نو د ملګري صابر دغه کتاب
ددې هر څه رومبئ هڅه او لمسون دے.

که زما سره څوک اتفاق کوي او کنه. دا کتاب د یو ګټور علمي بحث
اغاز کولې شي او د علمي بحث نه چرې هم غیر علمي او غلطې نتیجې سنه
راوځي.

په درناوي

رحمت شاه سائل
۲ اګست سنه ۱۹۹۴ء

# د صابر زیار

دیو قوم د ذهني پیاوړتیا او پرمختګ پته د هغه قوم د ادب په ائینه کښې لیدل کیږي. او د دغه ادب د هیئت او علمي څیړنې درک مونږ ته د دغه ژبې په تنقیدي لیکونو کښې معلومیدی شي. د پښتو ادب اوس د یو څو کلونو نه د نوې تجربو او نوي صفتونو سره اشنائي حاصله کړیده او په دې لړکښې ډیرې د قدر وړ اضافې اوشوې او د نوي غوښتنو (جدید و تقاضو) ترمخه دا ضروري هم ده چې دا سې لیکونه اوشي چې د ژور علمیت ژوندۍ روح پکښې په پوره ډول موجود وي. او د ادبي او تنقیدي تندې ماتېدو سره سره لوستونکي او خپله نقد کوونکي هم دا محسوس کړي چې د روایتي مطالعې او څیړنې د چوکاټ نه ځان بهر کړي او د ژوندي حقیقتونو په روڼ نظر برخېره طرفداري او څیړنه اوکړي. دا وسنۍ علمي نړۍ د غوښتنو معیار د خالص عقل په بنیاد ولاړ دي. او د دې حالاتو د دغه تقاضو ترمخه پکار ده چې د نن نقاد خپل فکرونه او صلاحیتونه د مصلحتونو ښکار نه کړي او د مستقبل په ائینه خپله څهره رڼه او صفا ښکاره کړي. په دې لړکښې د ګران صاحب شاه صابر دا زیار یقیناً چې د ډیر قدر او

ویاړ وړدي . تر اوسه خو په پښتو ادب کښې هر کتاب د ادب په جولۍ کښې دیوې درنې اضافې سبب ګڼلې شوې دي . نو که د یارۍ دوستۍ د خاطر نه پرته ددې کتابونو څېړنه اوشي نو یقیناً چې د مقدار په لحاظ ډېره اضافه شوې ده . خو د معیار په لحاظ دا اضافه په اوړو کښې د مالګې برابر ده او که زه د صابر صاحب دا کتاب د معیار په لحاظ په دې لیکونو کښې د ټولو نه درنه اضافه اوګڼم نو مبالغه به نه وي . صابر صاحب د خپلو موضوعاتو سره پوره پوره انصاف کړېدې او د تنقیدي څېړنې ئې پوره حق ادا کړې دے .

"په پښتو ادب کښې تحقیق او تنقید" یقیناً چې ډېر کراو او زیار نه پس لیکلې شوې ده . دا مقاله به د پښتو ادب د طالبعلمانو او لوستونکو دپاره د یو ګائډ کار هم اوکړي کوم کتابونه چې اوس زمونږ په لاس نه راځي د هغې متعلق دا مقاله مونږ ته دومره معلومات راکولې شي چې د غه کتاب په څه موضوع څه قسمه لیکونه لري .

په دې مقاله کښې بناغلي صابر صاحب د ډېرو معتبرو لیکوالو او ادیبانو ډېرې غټې تېروتنې او غلطۍ په ګوته کړي دي . او د یو نوی بحث لاره ئې پرانستې ده . صابر صاحب په ډېر علمي او مهذب انداز کښې د ادبي مشرانو په ادبي ، علمي تاریخي او تنقیدي تېروتنو داسې نیوکې کړې دي چې هر څوک به ورسره اتفاق اوکړي . په دې کتاب کښې د تنقیدي اصولو تر څنګه زیات کار د عقلي او علمي تجربې نه اغستې شوې دے .

دکتاب اکثره برخه په اساسي او ژور فلسفيانه شعور او منطقي استدلال مشتمله ده او صابر صاحب د خپلو تنقيدي نظرياتو په رڼا کښې د خپل رسا ذهنيت او وسيعې مطالعې تر څنګه يو داسې کار تر سره کړي دي چې دهغې صفت به بې ځايه نه وي او دا په پښتو ادب کښې د تنقيد په اصولو ورمبې د قدر وړ کوشش دې -

عثمان اولسيار

۱۸ ستمبر سنه ۱۹۹۲ ء

# څه خبرې ـ څه تجويزونه

"اے مومنانو که څوک فاسق تاسو له د شر خبر راوړي نو
پوره تحقيق کوئ ـ هسې نه چرته په ناپوهۍ کښې يو قام ته
زيان اورسوئ او بيا پخپلو کړو پښېمانه نه شئ ـ"

(سورة الحجرات)

"اے خدايه په موږ څيزونه داسې اوښئه څنګه چې هغه
وي ـ" (دعا)

خدائے او د خدائے رسول حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسلم د کائناتي مظاهرو، انساني دشتو، تعلقاتو، رويو، تاثراتو ـ خبر او خبرې د حقيقت معلومولو د پاره انسان ته بيا بيا د تحقيق کولو تاکيد کړے دے ـ

څکه چې د انسان بقا، بناست، سمون او سوکالي په تحقيق ده ـ تاريخ ګواه دې چې کوم قام د تحقيق په ميدان کښې څومره پرمخ تګ کړے دے ـ په دنيا کښې ئې دومره واک اختيار لړلے دے ـ نو! د تحقيقي رويو درستولو د پاره د تنقيدي شعور ضرورت وي ـ د دغه کيسله تحقيق او تنقيد څنګ په څنګ

سفر کړے دے ۔

دتحقیق اوتنقید په خوږو مرې پتې ژبې سترګه ورې او زور ورې پاتي شوي دي ۔

د پښتو دیوانکي او لیکونکي په دې خبره اتفاق لري چې زموږ په ژبه کښې نثر ډېر کم دے او په نثر کښې د تحقیق او تنقید برخه ډېره کمه ده ۔ د علم نور ارخونه خو پرېږده چې په خالص ادبي مېدان کښې هم ډېرې نیمګړتیاګانے لرو ۔

د پښتو ادب د طالبعلم په حیثیت ما ددغه نیمګړتیا د احساس د مخه اکثرو پښتنو لیکونکو ته په دغه حقله د څه لیکلو لسون کړے دے ۔ د خپلې کم علمۍ باوجود مې هم په یره یره یو څو لیکونه کړي دي ولې د کتابي شکل ورکولو اراده مې نه وه ۔

خو ! چې په هغه سیمینار کښې مې په پښتو ادب کښې تحقیق او تنقید" تر عنوان لاندې خپله مقاله واوروله کوم چې د ډاکټر محمد اعظم اعظم په مشرۍ کښې د پښتو څانګې پېښور پوهنتون له اړخه د پښتو نثر په حقله په باره کلۍ کښې شوي وو ۔ نو ګڼو شمېره لیکوالو داد راکړو ۔ اګرچې په دغه سیمینار کښې ما د ځینو مشرانو خاصکر میاں تقویم الحق کاکاخیل صاحب په مشوره د خپلې مقالې خلاصه اوروله وه خو چې د ځینو پوهانو نه مې ددغه خلاصې ستاینه واورېده ۔ نو زړه مې اوموند او پوره مقاله مې د څه کسانو د نظره تېره کړه ۔ د هغوئي په داد او مشوره مې دچاپ کولو اراده اوکړه

د کتابت په غرض فضل ربی راهي ته

حواله کړه ـ د املا او پروف ذمه واري ملګري عثمان اولسیار قبوله کړه.
څه د راتلونکي ناوزګارتیا او څه زما ناراستۍ خبره ده او ځنډ ولار ـ په دغه
وروستیو کښې ما څه داسې کتابونه او مقالې اولوستې ـ چې دغې د یادونې
نه بغیر راته ددې کتاب بنیادي مقاله په پښتو ادب کښې تحقیق او تنقید
نیمګړې ښکارېده ـ

ولې ! یو خو ددغه مقالې کتابت شوې وو او بل په یو خاص وخت
کښې لیکلې شوې او خاص ځایې کښې اوروله شوې وه ـ

ددغه مشکل نه د وتو په خاطر مې دا فیصله اوکړه چې ددغه
کتابونو او مقالو په حقله څه اولیکم او "په پښتو ادب کښې تحقیق او
تنقید" تر عنوان لاندې یې هم په دې کتاب کښې شامل کړم ـ هم دغسې
مې وکړه ـ هغه مقاله هم په خپل ځائې پاتې شوه او هغه کتابونه هم یاد
شو د کومو یادونه چې ضروري وه ـ

د افغانستان په نوو چاپ شوو پښتو کتابونو کښې د "ی" او "ه"
مسئله لږه کنفوز ده ـ په ځینو کتابونو کښې د "ی" لاندې ټکې
لیکلي شوي او په ځینو کښې نه دي کړے شوي ـ په ځنو کښې د مفرد په
آخر کښې "ه" لیکلے شوے او په ځینو کښې نه ده لیکلے شوے د احتیاط
باوجود هم ددغه کتابونو په حقله د څه لیکلو په وخت زما په قلم
دغه اثر شوے دے.

ددې نه علاوه په دے کتاب کښې د املا ځینې نورې غلطۍ هم
شته ځکه چې د پښتو د نوې املا سره لا تراوسه هغسې شناخت نه لري.
په پروف کښې د امکان تر حده کوشش اوشو او چې څه پاتې شو د

هغې د بخښنې غوښتو سره سره د وضاحت کوم چې زۀ د هغه پښتو رسم
سره اتفاق لرم کوم چې په هغه سمپوزیم کښې د سمپوزیم د مندوبینو په
اتفاق سره فیصله کړے شوے دۀ .کوم چې د پښتو اکېډیمي پېښور په اهتمام
د ۱۹۹۰ء دکال د جولائۍ د لسمې نه دولسمې نېټې د پښتو رسم الخط په حقله
بارۀ کلی کښې شوې وو . ځکه چې د پښتو لیک دود په لړ کښې د راپورته
شوي انتشار او افراتفرۍ د خ بنوي او نوي علمی ضرورتونو ترسره کولو
د پاره د غه فیصله منل مناسب دي .

د د غه وضاحت سره سره زۀ د خپلو لوستونکو او خاصکر پښتنو پوهانو
طمع لرم چې ماته به زما کمے او کوتاهۍ په نخښنه کړي ځکه چې د تحقیق
اصول ، ضابطې او طریقې په ځائې کول ګران کار دے او بیا د اقتباساتو او حوالو
خبره خو ډېره پېچېده دي .

په هره موضوع د تحقیقي لیک په وخت لیکوال په هغه حقله د نورو
لیکونکو د لیکونو (که وي) او نظریاتو نمونې وړاندې کوي څۀ اعداد رانقل
کوي . د تحقیق د استاذانو په خیال د غه نمونې ضروري ، نمائنده او لنډې
پکار دي . اوږدۀ ، ګڼ او غیر ضروري اقتباسات په تحقیق کښې د وړ والي
راولي . د نورو د وینا ګانو په ډنګ ډونګ کښې د محقق د خپلې خبرې جنازه
ووځي .

لوستونکې دا فکر واخلي چې اخر د څۀ نوې او تازه معلوماتو د پاره
په ما د غه لیک ولوستې شو . عالمان په دے اتفاق لري چې که اقتباس لنډ
وي نو د متن د ننه په انډا کامو کښې بند ځايول پکار دي . او که اوږد وي
( څو تر ممکنه حده اوږدول نۀ دي پکار ) نو بیا د متن نه بهر د کامو سره

بغیر له نقل کول پکار دي .

د حوالو / بېلګو خبره لا نوره زیاته پېچیده ده . په دغه حقله د مغربي دنیا تر اثر لاندې د نورې دنیا په ځینو برخو کښې دوه طریقې پېژندلې شوې دي چې یوه د هارورډ یونیورسټي او بله د شکاګو یونیورسټۍ پورې منسوب ده .

د هارورډ د طریقې تر مخه د حوالې / بېلګې یوه لنډه غوندې برخه په متن کښې د بریکټ دننه راوړې شي . په دې کښې د لیکوال خاندانې نوم یا د نوم څه برخه د تصنیف نوم ، د چاپ کال او د کتاب متعلقه مخ یادولې شي بله برخه د کتاب / مقالې په اخرې مخونو لیکلې شي . په دغه برخه کښې د لیکوال د پوره نوم سره سره د کتاب د چاپ کال . د کتاب / مقالې پوره نوم او د اشاعت په حقله نور معلومات راوړې شي . د شکاګو د طریقې د مخه د متن لاندې هم په دغه مخ د دغه مخ حوالې راوړې شي . مغرب د تحقیق چېل روایات او حالات لري . د دغه روایاتو حالاتو د نظره چې دغه طریقې چېلې کړې دي . هغلته د لیکوالو او چاپ کېدونکو کتابونو / مقالو او ریسرچ پیپرو شمېر ډېر زیات وي . د لیکوالو د نومونو اکثر برخې یو شان وي . اکثر خاندانې نوم یا د خاندانې نوم څه برخه د مختلفو لیکوالو تر منځه شناخت کوي . په دغه مشکل د قابو موندو د پاره هغوئ دغه طریقې چېلې کړې دي . او لوستونکي يې ورسره بلد شوي .

دغه طریقې د کمو خوبو سره څه خامې هم لري لکه د ورومبي مطابق لوستونکي د حوالو / بېلګو په حقله څه معلومات هم په هغه مخ اوليولي او کهٔ نور معلومات ضروري کښې نو د تفصیلي معلوماتو د پاره د کتاب اخرې مخونه

راوړوي . ولې مشکل دا دی چې اول خو په دغه ځای د حوالي لوستل د لوستونکي
نه د متن تسلسل ماتوي او په تفصیلي لوسته پسې بیا بیا اخري مخونه راړول
د متن د تسلسل ماتېدو سره سره وخت هم خرابوي.

په دویمه طریقه کښې د متن ماتېدو سره سره کله کله په یو ځای د حوالو/
ېلکو د شمېر زیاتوالې او اوږدوالې د متن خوند رنګ خراب کړي . زمونږ د
تحقیقي مقالو دپاره هم دغه دویمه طریقه خپله کړې شوې ده او په چاپ
کتابونو کښې ېلکې دکتاب په آخره کښې راوړې شي . اګرچې په دغه حقله
دېوې نمائنده جرګې ، ادارې یا کمېشن له اړخه څهٔ فیصله پکار ده .

خو زمونږ د چاپ کېدونکو کتابونو/مقالو/ دیسرچ پېپرو او ډیکوالو
شمېر ډېر کم دے . په اسانه شمېرلې او پېژندې شي او لوستونکي ئې د
نومونو د مختلفو برخو دغه ترتیب سره اشنا دي په کوم ترتیب سره
چې په کتابونو لیکلي شي . د مغرب په بڅایه تقلید کښې د ېلکې راوړلو
په وخت د دغه ترتیب ادلون بدلون به صحي خامخا کنفوژن پېدا کړي .

دا هم حقیقت دے چې د پښتو لوستونکي د نثر او بیا علمي نثر لوستو سره
نوے نوے بلدېږي . زمونږ نثر ساده ، هوار او معلوماتي پکار دے . په پښتو
لیکونو کښې د هرهغه عمل نه ډډه پکار ده کوم چې د متن روانی ماتوي یا ئې
خوند رنګ پیکه کوي . د متن په منځ کښې اقتباس راوړل خو ښېنې مجبوري ده.
ولې کهٔ ددې سره ېلکه هم رانقل شي نو د متن خوږوالي او هواري به ېکه
شي . نو په خیال د متن د ننه اقتباسات لنډ او د متن د فکري بهیر د
روانی په مناسبت پکار دي . ېلکه په بل داسې مناسب ځائې راوړل پکار
دي چې د لوستونکي نظر د متن څخه نهٔ تېروي . مناسب به دا وي چې ېلکې

د کتاب په آخري څخونو راوړي شي - اوکه کتاب په بېلو بېلو بابونو کښې وېش وي یا د ځان ځانله مقالو مجموعه وي نو د هر باب یا هرې مقالې په اخر کښې دهغې باب یا مقالې ښلگې راوړل پکار دي - ددغه نظره به دهغه کتاب / باب / مقالې برخه هم وي او ځانگړے حیثیت به هم لري.

د لوستونکي نظر به دمتن د روانۍ د بهیر سره په څخه هم څي او د ښلگو څخه معلومات به هم ترلاسه کولے شي - ما هم ددې نظره په دې کتاب کښې د مقالې په آخر کښې په بېلو څخونو ښلگې راوړي دي - اوکه چرته ضروري شوے ده نو د ځینو ښلگو او ماخذونو لنډه پېژندگلو مې هم کړے ده اوکه چرته مې د یو کتاب دیوې خاصې برخې په ځائے دهغه کتاب د زیاتو برخو نه استفاده کړے ده نو د ښلگو د روایتي طریقو په ځائې مې دهغې ماخذونو لنډه پېژندگلو لیکلے ده که د ځینو عالمانو یو لیک مې په زیاتو ځایونو کښې لوستې نو ښلگه مې هغه راوړې ده په کومه کښې چې ما

د تحقیق او تنقید په نظریاتي اړخ کښې د لیکوالو ترمنځه د ورو لوړو اختلافاتو باوجود ترېخوالے نهٔ وي.

خو! د عملي اړخ اختلافات یئې ډېر تاؤ ترېخوالے لوئي او بیا په روایتي ټولنه کښې خوهسې هم هره نوے خبره ډېر مخالفین لري. زهٔ په علمي مسئلو کښې د هلو پرو او خپل پردي منونکے نهٔ یم.

د خپلو معلوماتو ترحده مې دهغه ټولو پښتو لیکونو یادونه کړے ده.

کوم چې د تحقیق او تنقید په لړ کښې د یادونې وړکېدے شي یا د محقق او نقاد په کار راتلے شي خوکه داسې لیک وي چې ددغه اهمیت لرلو باوجود نهٔ وي یادشوې نو دابهٔ زما د مطالعې کمې او زما ددې لیک نیمگړتیا وي.

که ما په خپل نیک کښې د چا د تحقیق او تنقید د طریقه کار سره اختلاف کړے وي او یا مې د هغوئ د نیکونو نیمګړتیاګانې په ګخښنه کړې وي. نو دا به زما په شخصي خوښه ناخوښه یا د چا په اشاره مشوره نه وي شوي بلکې د تحقیق او تنقید د تقاضو خیال به ساتلې شوي وي. که څوک زما د انداز و ، تجزیو او دلائلو سره اتفاق نه لري نو هغوئ د اختلاف حق لري او دا فرض یې هم جوړیږي چې زما د نیک کمي او کمزورۍ په ګخښنه کړي.

زه خپله هیڅ رائے حتمي نه ګڼم او نه د اختلاف رائے انکار کوم خو علمي عمل په ذاتیاتو بدلول مناسب نه ګڼم او دغه ډلیزو استاذانو یریږم څوک چې د علمي رویو ولو د پاره د خپلو بې علمه او جذباتي شاګردانو نه د دستانو کار اخلي . دغه دستانې که څخپله بې حسه او بې حرکته وي خو په دې کښې د ننه د ډلیزو استاذانو هغه کلک ، سخت او ناترسه لاسونه وي چې چالاه سپړه ورکړي هغه یا خو د درده خپل لاس څخپلو غاښونو کښې اونیسي او یا د متړه په دستانه چک اونګوي . د دوئ لاس په امان وي . مطلب یې پوره شي . علمي عمل تیکنې شي ، علمي رویې ترندۀ شي د دوئ استاذي په استاذی پاتې شي .

زه د چا د استاذے بې قدري نه کوم نه خپله د استاذے دعویٰ لرم او نه خپل نیکونه کارنامه ګڼم . په دغه حقله د سائل صاحب د دے وینا سره اتفاق لرم . سه

که دومره اوشي نو هم فرض به پوره شي اشنا
چې د ارمان په مزار او بنکې بلول شي اسان

نو ! دومره وایم چې پښتانه نور به ټوپکو او کوتکو نازول نه دي

ښکار بلکې د تحقیق سره اشنا کول دي د تنقید سره بلدول دي - په ښتنه ټولنه کښې د لوستي کلتور او علمي روڼو ته وده ورکول دي - د پښتو او پښتنو د خواخوږو لیکوالو دغه فرض دی چې چا څومره پوره کړه دومره د قدر وړ دے او څوک چې د ذاتي مصلحتونو او کمزورو له کبله د دغه فرض پوره کولو نه مخ پټوي او سپکاوي کوي - د هغوی دپاره د فیض احمد فیض په دے دُعا امین ویل ښکار دي - ؏

جنکا دین پیروی کذب وریا ہے انکو
همتِ کفر بھی دے جراتِ تحقیق بھی دے

جن کا سر منتظر تیغِ جفا ہے انکو
دستِ قاتل کو جھٹک دینے کی توفیق بھی دے

زهٔ د ملګري عثمان اولسیار ، حضرت زبیر ، بشر نوید د دغه خدماتو اعتراف کوم د کوموپه برکت چې داکتاب د چاپ جوګه شو - زهٔ د خپلو هغه استاذانو او دوستانو شکور یم چا چې ماته وخت په وخت د تحقیق او تنقید په حقله د لیک لوست تلقین کړے. او د پښتو ادبي جرګې د ټولو غړو په خصوصی توګه د رحمت شاه سائل او ډاکټر خانزیاب هم مننه کوم د چا د شک او ټک ډیرې چې زهٔ د خپلو لیکونو سره خواري کوم -

اګر چې زهٔ د لیکوال په حیثیت هغه علم ، پوهه ، تجربه ، صبر ، استقامت او باقاعدګي نهٔ لرم څهٔ چې د تحقیق او تنقید دپاره ضروري وي - نهٔ ځان د نقاد او محقق ویلو جوګه ګڼم .

خو ! کهٔ زما داکتاب د پښتو ادب لوستونکو ته څهٔ نوي معلومات ورکړي نو دا به زما خوشحالي او کامیابي وي -

صاحب شاه صابر

# پښتو ادب کښې تحقیق او تنقید (۱)

---

ادب که د خپل تولنیز رنګ، تخلیقي آهنګ، نفسیاتي اثر او جمالیاتي تأثر له مخه د انسان د مادي او روحاني ژوند په وده کښې هم څه د ستائینې وړ کردار لري نو د خپل تن وجود د سمون او سلامتیا د پاره تحقیق او تنقید ته محتاج دے. تنقید که یو خوا د عام انسان ادبي پوهه زیاتوي نو بل خوا د خلقو د ادبي ذوق روزلو او ادبي قدرونو څرګندولو کار هم ترسره کوي او ددې سره سره د ادب د ودې لارې چارې هم جوړوي.

د ادب او تنقید د دغه ژور تړون او تعلق د خاطره نامتو شاعر او نقاد ټي. ایس. ایلیټ وئیلي دي چې "تر هغې د تنقید ځائې نه وړکیږي ترڅو چې ادب، ادب وي. ولې چې د ادب او تنقید بنیاد یو دے."[۱]

د پروفیسر کلیم په خیال "تنقید یو عقلي صلاحیت او استعداد دے."[۲] د تنقید نوموړي اُستاد آل احمد سرور د دغه تعلق اهمیت څه داسې څرګندوي:

"د تنقیدي شعور نه بغیر تخلیقي شعور بې لارې کیږي. او د تخلیقي جوهر نه بغیر تنقیدي شعور پیکه وي."[۳]

د ادب د خوریدو او غوړیدو د پاره د تنقید ضرورت او اهمیت په خپل

ځای نه خود تحقیق نه بغیر نهٔ د ادب بشپړ تاریخ لیکلے کیدےشي او نه تنقید د هغه باوړ جوګه کیدےشي - په کوم چې تنقید فخر کولےشي - تحقیق د ادب په سترګوکښې د واقعیت دنیا او دتنقید په زړهٔ کښې د یقین شمع بلوی - د یوعالم فاضل ادیب سید محمد عبد الله د معلوماتو په دنیاکښې " د تحقیق لغوی معنی د یوشی حقیقت ثابتول دی - او په اصطلاحي ډول د لوستي د یوداسے انداز نوم دے چې پکښې دځینې منلو حقیقتونو په دنیاکښې د شته موادو دروغ رښتیا کتےشي " ۴

د انټرنیشنل ډکشنری آف انګلش لینګویج (دویم چاپ) د مخه د تحقیق معنی محتاط یا تند لټون، ژور تکل، د حقیقتونو ډاګیز کول، د نوی حقیقتونو په دنیاکښې د رواج شوو نتیجو، نظریاتو یا قوانینو بیا د سره جاج اغیستل. د کوم شخصیت یا موضوع او د غسې نورو څیزونو په حقله د یوتن ځهٔ خپل نوی معلومات وړاندې کول ۵

د تحقیق داهمیت منلو د پاره دومره هم پوره وه نوحقیقت دادے چې تحقیق د شته موادو د دروغ رښتیا معلومولو سره سره په نوی نوی معلوماتو دابرسیره کولو د انسانیت علمی پنګه هوڅۍ درنوي -

د تحقیق په برکت رښتیاوُ ته رسیدلي حقیقتونه چې د تنقید سرچینه وګرځي نوتنقید د خپل جمالیاتي نوند رنګ باوجود د سائنس دنیا ته د ورننوتو جوګه شي -

د تحقیق او تنقید په ښتو شتمن ادبونه د فکرو فن په خوږو مارهٔ پت وی او هم دد غه شتو له برکته د مغربي قومونو ادبي پنګې نهٔ یوا ځې د هغوی د پاره د ویاړ او افتخار جوګه دي بلکې د نورو قومونو ادبي دنیا ته

هم رنګ او دنیا ودکوي -

زما مطلب دا نهٔ دے چې ګني نورو قومونو زده کړه ضروري نهٔ ګڼله او یا د هغوی په زړهٔ او ذهن کښې د موجوداتو د حقیقت او ماهیت په حقله سوالونه نهٔ راپورته کېدل یا د دوی ژبې د علمونو هضمولو جوګه نهٔ وې یقیناً چې جوګه به وي او که نهٔ وي نو تاریخ ګواه دے چې د خپلې دُنیا او ما فیها د مظاهرو او د هغې سره د خپل تړون په حقله دوی هم ګڼ سوالونه راپورته کړي او یو شمېر جوابونه ئې لټولي دي -

نور د نورو قومونو او خاص کر د پاک وهند د اوسېدونکو دُنیا پهٔ زرګونو کاله د غوائې په خکرو لاړه وه. دغه فرسوده سماجي هیئت ددې ځائې دَ انسان سماجي شعور دومره پسمانده او ساتو چې منطقي استدلال او سائنسي وضاحت ئې هضم نهٔ کړے شو. د خپل هر سوال ساده جواب ئې لټو - دا سے ساده چې په هغې کښې دُنیا دیو خکره بل ته اوړېدے شوه. نو د غوائې د سره نهٔ شوه کوزېدے -

د ځنې نورو ایشیائی او افریقائی ژبو غوندې پښتو ژبه او د پښتنو د علمي زده کړې توان هم د هغه بدبختو سره مخامخ شوے دے. د کومو له کبله چې په ادب کښې علمي غورزې پرزې ورده نه شي مونده - که پښتو شاعري هر څومره تورډه پسته او زړهٔ راښکونکې ده ولے د پښتو ادب وجود داسې وینې وینې او پرهار پرهار دے چې کهٔ څوک زړهٔ چاودے حکیم پهٔ خپل حکمت ددغه پرهارونو نه د تحقیق او تنقید غوښنه راټوله کړي نو ایله که یوه لپه ترے د که شي او لپه هم چې د "قلندر مومند" نهٔ وي - ګني خبره به چونګ او چونګې ته ورسي -

د نورو مشرقي قومونو سره د ګڼو شریکو بد بختو په څنګ کښې پښتنو د
خپل مخصوص جغرافیائي ماحول له کبله ګڼې ځانګړې ښېښې هم لرلي دي. په خپلو
کښې قبیلوي جنګونو او د بهرنو زورورو زورګیرو طاقتونو سره اوږدو اښتو
که یو خوا د پښتنو نه د کتابونو، قلمونو په ځائې توره زغرې غوښتې دي
نو بل خوا یې ترینه د ژوند هغه قلادي تروړلي ده کومې چې د تهذیب، تمدن او
علمي ودې د پاره ړومبۍ شرط وي.

تخلیق خو په هغه ناقلارۍ کښې هم کېدے شي کومه چې د خوشحال
خټک په برخه رسېدلې وه.

که څوغره په غره د باز غوندې پرواز کړم
بیا به وي چې د خوشحال خټک پرنشته (۶)

لا یو غم را ځنې تېر نه وي بل راشي
مګر زه پېدا په ورځ د شورو شرېم (۷)

او په هغه قلارۍ کښې هم امکان لري. کومه چې د عظیم رانیزي ته
نصیب شوې وه.

خدائے به ورکړي معشوقه په خپل کال کښې
د عظیم غوندې که وکړه قناعت څوک (۸)

خو ! تحقیق او تنقید د روزلي افرادي قوت سره سره د قلارۍ ژوند، علمي
ماحول او پیسه تکه غواړي. پښتنو که افرادي قوت لرو خو ژوند یې
جنګ، او ماحول یې وینې وینې وو. د پیسو تکو حال یې دا وو چې
کتابونه قلمونه انستل او لائبرېرې جوړول خو پرېږده اکثرو خلقو د

نورکلي په کټه وته د واده کوېدن رواج نهٔ شو ترسره کولے - ددې د پاره به ئې هم د هندوستان او نورو لرو لرو وطنونو مسافري کوله -

هندوستانه شه د دنیا راوړه
په کورني دُنیا مې پلار نهٔ درکوینه

کله کله نوبه دَ دغه مسافرو زلمو په نوم ناستې پېغلې په کور زړې شوې او خپل زړهٔ چاودې (سویلې) به ئې د ټپې په تارکښې داسې وپېیل :

پهٔ ما دې وار د ځوانئ تېر کړو
ستا دې رانشي دَ دکنه مهرانونه

کهٔ چرته د پښتونخوا په دې خاوره د علمي غورزو پرزو، د پاره د سازګارو حالاتو دود پاتې شوے وي نو وي به - د ګندهارا تهذیب به دلته غځولې کړې وي - هند، لاهور، سوات، تخت بهائي، پېښور او چارسده به علمي او ثقافتي مرکزونه پاتې شوي دي - د زرتشت د فکر اور به دلته رڼا کړې وي - "اوپسته" به دلته لوستے شوې وي - د ویدونو په سندرېزه دُعاګانو به ددې ځائے غرونه کړنګېدلي وي - د ګوتم بدهٔ نظریات به د دې ځائے په لارو کوڅو کښې خوارهٔ کړے شوې وي -

نو! دا زما د مور باهو چرې به وو" والله خبره ده - پښتانهٔ د دغه هر څهٔ نه داسې شو کولے شوې دي چې د دوي په معلوم تاریخ د دغه خبرو بوي هم حرام دے - چې د کوم وخت نه د پښتنو تاریخ په وثوق سره معلوم دے نو د هغې وخت نه دوي د جنګونو جګړو، تاختونو، تالاتونو، هجرتونو او مسافرو سره مخامخ دي -

دغه بې وسي، دغه بد حالي او دغه نا قلاری د دوئي په ژوند

کښې هم وه او په شعر کښې هم - د شعر خبره مې ځکه وکړه چې د پښتو شاعرۍ
پنګه درنه هم ده او خوږه هم - په دغه درونډ والي او خوږ والي کښې
ګڼ شمېره پښتنو د خپلې برخې همت کړے دے - خو د نثر تاريخ يواځې لنډ
تنګ نهٔ دے بلکې موضوع ئې هم لنډه تنګه ده - ځکه چې صوفيانو ئې
بن بنا کړې ده او هغوي      دَ ادب په خوند رنګ او ماهيت کار نهٔ
لرو - د هغوي مقصد خپل خيالات خورول او د خپلو مخالفو د نظرياتو ځنيوے
کول وو - اګرچې خوشحال خټک او د هغه د کورنۍ نورو نامتو ليکونکيو د پښتو
نثر دَ ژوند دَ ځنې نورو موضوعاتو سره هم اشنا کړو - خو بيا هم د پښتو
نثر په دنيا کښې تحقيق او تنقيد مناسب ځائے نهٔ دے موندے - اګرچې
هر لوئے شاعر څهٔ ناڅهٔ تنقيدي شعور هم لري - د خپل تخليقي صلاحيت
ازمائيښلو د پاره د ژوند په ګڼ شمېره موضوعاتو کښې د يو څو انتخاب کول،
د خپل تخليق بيا بيا جاج اخېستل او ونانول جوړول د تنقيدي شعور نخښې
نښانې دي د لرغونو پښتنو شاعرانو بيا خاص کر د لويو شاعرانو په
ديوانونو کښې داسې يو شمېر شعرونه موندے شي چې په هغې کښې يا خو
د شعر تعريف کړے شوے وي يا د تخليقي عمل سختۍ ته ګوته کړے شوي
وي يا د شعر دفاع کړې شوې وي يا چا شاعر خپل شعر ستائيلے وي او
يا ئې د بل چا د شعر صفت کړے وي دا ټولې تنقيدي اشارې دي - خو دَ
دې باوجود هم په دغه کسانو کښې يو ته هم نقاد نشي وئيلے کېدے -
اګرچې د هر لوئے ورو کي ليکوال د پاره د ستر نقاد او نامتو محقق
اصطلاحات استعمالونکي کسان به زما دې رائې سره اتفاق ونهٔ لري
ځکه چې د تنقيدي شعور او تحقيقي خوارۍ له کمې له کبله زمونږ ژبې

او قلمونه لړ.ې سره شوي دي او اکثر د رشتیاوُ په نوم هغه څهٌ ولیکو چې لوستونکي يې پهٌ داسې ډاډ يې بور ولو ګوم نهٌ وي.

فسانے اپنی محبت کے سچ ہیں پر کم کم!

بڑھا بھی دیتے ہیں ہم زیبِ داستاں کے لئے (۹)

د پخوانی یونانی نامتو شاعر هومر هم پهٌ خپلو شعرونو کښې تنقيدي اشارې کړې دي - د هغه نه وروستو د یونان نورو نوموړو شاعرانو لکه هیسیاډ، زنوفینز او بورجس هم کله کله تنقیدي خبرې شعر کړې دي - خو په دوي کښې یو هم نقاد نشي بللے کېدے - د دوئي نه ډېر وروستو پیدا شوے یوناني نابغه ارسطو د دنیا ورومبے نقاد ګڼلے شي او د هغه کتاب "پوئٹکس" د ادبي تنقید ورومبے کتاب بللے شي - خبره دا نهٌ ده چې ګني تنقیدي نظریات پهٌ شعر کښې نشي بیانیدے - ګوچې د تنقید د پاره دَ نثر ژبه موزون او مناسبه وي خو د فرانس نوموړي نقاد او شاعر نکولا بولو داپروا د اولسې پیړۍ پهٌ دوئمه نیمایۍ کښې د شاعرۍ د فن پهٌ حقله خپل نظریات پهٌ نظم کښې پهٌ داسې انداز بیان کړي دي چې د اتلسمې پیړۍ پهٌ ټول یورپ کښې د تنقید پهٌ حقله د غه کتاب معتبر ترین ګڼلے شو او نن هم د تنقید د تاریخ یو مهم باب یادیږي -

پهٌ حقیقت کښې تنقید معقول، منظّم او مستند علم دے - د ادبي اصنافو او فن پارو په حقله اُوپره معلومات سرسري رائې، ګډې وډې اشارې او غیر معقولې رویې د تنقید پهٌ تنظیم او ترتیب کښې پکار راوستے شي خو تنقید نشي بللے کېدے -

اګرچې ځنې ستر عالمان او پوهان پهٌ نظم کښې هم د تنقید ي

نظریاتو د اظهار توان لري خو د تحقیق دلیل و برهان او غور ځې پرزې خالص د نثر میدان غواړي -

د پښتو د زوړ نثر ټوله دُنیا پهٔ یو څو کتابونو آباده ده - د غه کتابونه روحاني، مذهبي، اخلاقي او تاریخي موضوعات لري - اګر چې پهٔ د غه کتابونو کښې چرته چرته د تحقیق او تنقید ځښې نښاني او اشارې کنایې پهٔ نظر راځي - لکه فلاني وئیلي دي - د فلاني نه روایت دے. دَ فلاني د بیاض نه نقل دے - پهٔ فلاني کتاب کښې مې د نظره تیر شوي دي او د غسې نور هغه بیانونه تر دې وخته سند نهٔ لري او کهٔ لري هم نو ډیر ضعیف وي - داسې ضعیف چې کهٔ ګوتې ور وړې نو دوړيږي - دَ پښتو نثر د ترلاسه شوي لیکونو او کتابونو ترمخه د سلیمان ماکو " د تذکرة الاولیاء" هغه اووهٔ مخونه چې عبد الحی حبیبي صاحب ترلاسه کړي او خواره کړي دي هم د غسې غیر مستندې تذکرې لري - دغه کتابچه دَ اوومې هجري پیړۍ په وروستي نیمایي کښې لیکلے شوې ده - پهٔ دې کښې د ځنې پښتنو مشاځو ځنې حالات او شعرونه خوندي کړے شوي دي - د معلوماتو بیانولو انداز ئې څهٔ داسې دے چې " نقل هسې کاندي "- "نقل کاندي" چې "نقل کاوه شي" - د پښتو ځنې پخواني نظمونه " د بیټ نیکه" دُعا د " ملکیار غرشین " ځښتن مومل دے " او ځنې نور د دغه څو مخونو پهٔ حواله تر مونږ رارسیدلي دي - د پښتو ادب ستر تاریخي کتاب " پټه خزانه " کښې هم د حالاتو او واقعاتو د بیان انداز پهٔ د غسې ډول دے - " نقل دیٔ "، " نقل کا "، " هسې وائي " خو د چا نه نقل دے ؟ څوک وائي ؟ د ویونکي د وینا سره څهٔ تعلق دے ؟ د غسې خبرې پهٔ د غه کتابونو کښې

نهٔ شي موندے. او کهٔ څهٔ دي نو بيا دا سې دي چې ليکونکي يا خود پلار ته اوريدلي دي او يا د چابل د غسې مشر دنولې تو غوږ وشوي دي- اګر چې د غه ليکونه ددې وخت پهٔ تحقيقي ګز ناپ کول مناسب نهٔ دي او پهٔ خپل تحقيق کښې پکار دا وسته شو خو تحقيق ئې نشو ميلي.

دغسې د پښتو نثر د ورومبي مستند کتاب "خير البيان" ليکونکي بايزيد روښان پهٔ خپل د غه کتاب کښې د خپلو دعوو او وېنا ګانو په ثبوت کښې قرآني آيتونه او د پيغمبرؐ حديثونه راوړي دي- خو کهٔ يو خوا ئې د غه آيتونه او حديثونه د نورو عبارتونو سره ګډ کړي دي نو بل خوا ئې د هغې حوالې هم نهٔ دي پهٔ نخښه کړي- د غه رنګ د پښتو نثر د دوئيم لوئے مستند کتاب "مخزن" ليکونکي اخون درويزه بابا هم په خپل د غه کتاب کښې کهٔ د "خير البيان" پهٔ ژبه او موضوع څهٔ ځائے ځايه تبکونه کړي دي او د خپلې وېنا پهٔ حقله ئې د ځينو عالمانو وېنا ګانې د دليلونو پهٔ دول وړاندې کړي دي خو د غه وېنا ګانې هم ثبوت نهٔ لري-

د دوي نه ورستو خوشحال خان خټک پهٔ دستارنامه کښې د دستار دَ فضيلت او پهٔ مسلمانانو د دې د فرضيت پهٔ حقله بيک کړے دے د دستار دَ لياقت د پاره چې هغوي د کوم شلو هنرونو او شلو خصلتونو بيان کړے دے په هغې کښې د شعر پهٔ علمي حېثيت، د علم په معنیٰ، مفهوم، اهميت او افاديت او د نسب د معلومولو پهٔ ضرورت بحث کړے دے- د غسې افضل خان خټک په تاريخ مرصع کښې د خواجه نعمت الله د "مخزنِ افغاني" له فارسۍ نه پښتو ژبا ړې سره سره د خپلې کورنۍ او نورو پښتنو د تاريخ ځنې واقعات را نقل کړي دي- د خوشحال خټک د بياض نه ئې ځنې اقتباسات را نقل کړي

دي او په يو ځاے کښې ئې د اخون درويزه په حقله د خوشحال خټک د هغه راۓ سره اختلاف کړے دے کومه چې هغوئي په "سوات نامه" کښې کړې ده. د غسې په د غه ليکونو کښې داسې تنقيدي او تحقيقي اشارې کنايې شته چې د تنقيد او تحقيق په تاريخ ليکلو کښې تر ځه نه ځه کار اخستے کېدے شي. خو هله کۀ احتياط د لاسه ورنۀ کړے شي - ولې پۀ د غه يو ليک کښې هم د باقاعده تحقيق او تنقيد نمونه نشي ترلاسه کېدے - د پښتو پۀ نثري ليکونو کښې د د غه رنګ اشارو کنايو د غه سلسله تر شلمې پېړۍ راسي - د شلمې پېړۍ لويو واقعو، درنو درنو حادثو او لويو لويو بدلونو نو د پښتو په خاوره هم د بېدارۍ باد ونه والوزول - د مذهبي اصلاحي او ثقافتي تحريکونو زړے زرغون شو - د د غه تحريکونو پۀ بهير کښې د پښتو ليکوالو غوږونو ته هر ځۀ درانۀ وو - پۀ شاعرۍ، افسانه، ډرامه، ناول، مضمون او مقاله کښې د فرسوده رسمونو نه واخله د سياسي او معاشي ادارو پورې هر ځۀ پۀ ډول ډول وغندلې شو - کۀ د عبدالاکبرخان اکبر "خدائي خدمتګار"، د عبدالخالق خليق شهيده سکينه او د جليا خان "درد" د د غه رنګ ډرامو نمونې دي - نو د راحت زاخيلي "کونډه جينۍ" د د غه قسمه افسانو نمونه ده - د ماسټر کريم د جولۍ ګلونو اکثرې افسانې يا افسانه نما ليکونه، د ليونې فلسفي "ګډې وډې" او د پښتون مجلې د مستقلو عنواناتو "بخرۍ" او "ننګۍ دُنيا" تر سرخطونو لاندې د ماسټر کريم شرر صاحب او د هغوي د ځنې نورو ملګرو ليکونه د د غه وخت پۀ سياسي، معاشي او ټولنيز ژوند تبصرې او طنزونه دي - اګرچې دا تبصرې به د يو خاص نقطه نظر د يو خاص مقصد د پاره کېدلے - خو مقصد هم لوې وو او د تبصرو معيار

هم بد نهٔ وو -

د قومي ژوندانه په دګونو کښې د بېدارۍ نوے تو کېدو نکي وينې پښتانهٔ پوهان د خپل اصل نسل معلوملو او د خپل ادب تاريخ جغرافيه لټولو ته و لمسول - د قومي او ادبي تاريخ ليکلو په لړ کښې علمي او تحقيقي غورزي پرزې شروع شوې خو د مو اصلاتو نيمګړتيا، د تعليم کمۍ او د سياسي هلوځلو تودخت تنقيدي شعور او تحقيقي نظر غوړېدو او غوړېدو ته پرې نښود - ولې چې هم ددې پېړۍ په دويمه نيمايۍ کښې حالات بدلون تيکاؤ شو - هنګامي مسئلې لږې غلې شوې - د فيودلي نظام فرسودګي لږه په شا و تمبېده، مېنځګړه طبقو لږ توان وموندو - په مو اصلاتي نظام کښې لږه بهتري راغله تعليم څهٔ نه څهٔ خور شو، ذهني توازن پيدا شو نو د تحقيق او تنقيد د پوره کوندې د پاره زمکه څه نه څهٔ هواره شوه - اولسي ادبي جرګه جوړه شوه، پښتو اکېډيمي په وجود کښې راغله، په افغانستان کښې د مخکښې جوړه پښتو ادبي ټولنه چټکه کړے شوه - دد غه ادارو علمي غونډو او چاپ آثارو يو داسې علمي فضا او ادبي ماحول پيدا کړو - چې په يو وخت کښې د تحقيق او تنقيد يو شمېر لوبغاري پيدا شو - که څوک د دغه ذکر شوي ادارو غړي وو او کنه خو دا ټره ئې يوې ددې ته پاتې نشو - په لږ وخت کښې په ګڼو موضوعاتو يو شمېر کتابونه، مضمونونه او مقالې وليکلے شوے او ترننه ليکلے شي -

زهٔ د خپلې مطالعې په رڼا کښې د خپل ادب د تحقيقي او تنقيدي پنګې څهٔ داسې وېش مناسب ګڼم -

I (و) هغه ليکونه په کومو کښې چې د ځنې شهادتونو په رڼا کښې د پښتون

قوم یا یوې پښتنې قبیلې اصل نسل، بیورښت او ژوند ژواک څېړلے شوے دے۔

هسې خو ډېر پخوا دَ افضل خان په "تاریخ مرصع" کښې د خټکو په حقله او ورپس معظم شاه په "تواریخ حافظ رحمت خاني" کښې د یوسفزو د اصل نسل او ځنې مهمو واقعاتو په حقله معلومات راغونډ کړے شوي دي۔ خو دغه د قدر ور تاریخي دستاویزات په تذکراتي ډول لیکلے شوي دي۔ د څه دعوې یا واقعې په حقله علمي بحث او مستندې حوالې نهٔ لري۔

د شلمې پېړۍ د رومبي نیمائي په آخري کلونو او دویمه نیمائي کښې چې په دې لړکښې په پښتو ژبه کوم د قدر ور کتابونه او مضمونونه ولیکلے شو په هغې کښې د قاضي عطاءالله د پښتنو تاریخ (خلور ټوکه) دَ بهادرشاه ظفر "پښتانهٔ د تاریخ په رڼا کښې" "د خواجه محمد سائل" کوډي اسپي" د سیال کاکړ "پښتو او پښتانهٔ په سهېلي پښتونخوا کښې د لطیف طالبي مضمون (چاپ مجله جرګه) "دکاکړو قبیله" د ستائنې ور دیکونه دي۔ اورېدلي مې دي چې عقاب خټک د خټکو په حقله او عبدالحلیم اثر د پښتنو د اصل نسل په حقله د قدر ور تحقیق کړے دے۔ خو د اثر صاحب دغه یک چاپ شوے نهٔ دے او د خټک صاحب کتاب ما تر دې وخته نهٔ دے لوستے۔ د خپلې د غه نیمګړتیا له کبله پهٔ دغه حقله ځان د څهٔ وېلو جوګه نهٔ ګنړم۔ قاضي عطاءالله خان په خپل یک کښې د اکثرو پښتنو قبیلو د اوسېدو د ځایونو او ژوند ژواک په حقله د قدر ور معلومات راغونډ کړي دي۔ خو د دوئ د اصل نسل او خوې خصلت په حقله ئې روایتي نظریې خپلې کړي دي۔

بهادرشاه ظفر په دې حقله د روایتي نظریو جاج هم اخستے دے او نادرهٔ

نازره ئې د خپلې نظريې وړاندې کولو هڅه هم کړې ده خو دليلونه
يې کمزوري او د خپرنې طور طريقې يې روايتي دي - په دې حقله دا خبره
ياد ساتل پکار دي چې د پښتنو د اصل نسل په حقله دا نظريه ډېره
زړه (وېخه ده چې دوی بني اسرائيل دي - په نوي وخت کښې عبدالحليم
اثر او روشن خان د غه نظريه په نوي حوالو او دليلونو ثابته شتمنه
کړې ده - اګرچې د غه نظريه د ډېرو لويو عالمانو د علمي مرستې باوجود
هم څني کمزورۍ لري خو په مکمله توګه په اسانه نشي ردکېدے -
ددې په ضد دا نظريه وړاندې شوې ده چې پښتانه " آرين " دي -
دا دعویٰ که هر څو څنې په زړه پورې دليلونه او ثبوتونه لري خو دَ
نوي والي له کبله په پوره دول نه ده ترتيب کړے شوې - غني خان او څنې
نور پښتانه پوهان ددې منونکي او مرستيال دي خو عبدالحی حبيبي يې
لويې علمبردار پاتې شوے دے - په دې حقله د هغوي هغه نظريات د لوې
ډېرې انتهاپسندۍ باوجود په دليل او برهان پوره دي - کوم چې " د
پښتو ادبيا تو تاريخ " کښې وړاندې کړے شوي دي -
د غسې د سائل صاحب، سيال کاکړ صاحب او لطيف طالبي ليکونه دَ
څنې قبيلو د اصل نسل يا ټولنو ژواک په حقله په زړه پورې معلومات
لري خو د غه معلوماتو د تحليل او تجزيې نه يې ښنده کړې ده - څکه
چې په ننني زمانه کښې د يو تمام تاريخ ليکل يوازې د تاريخي دوستاويزاتو
نمونې راغونډول يا د قبيلو شمېر نه دے بلکې ددې سره سره د يو شمېر طبعي
او غير طبعي علمونو د ژورې مطالعې او د هغې د استعمال د طريقې زده کولو
په برکت انسان ددې جوګه کېدے شي چې معقول تاريخ وليکلے شي يا د يوې

قبيلې د اصل نسل په حقله په ذرهٔ پوره نظريه وړاندے کړے شي ـ نو دغنې درو اوځنې لويو کمزورو باوجود هم دغه ټول يکونه د قدر وړ دي ـ ځکه چې د څهٔ لويې سرکاري يا غير سرکاري ادارې د مرستې نه بغير په خپل سر اوخپلو وسائلو دقومونو او قبيلو د تاريخ او جغرافيه په حقله معلومات راغونډول په يقيني ډول ګران کار دے ـ په دغسې ګرانو کارونو ترسره کولو کښې د غسې کمے پاتې کېدل ناشونې خبره نهٔ ده ـ

(ب) هسې خو د پښتنو د قومي ژوند په وجود کښې کنهو واقعاتو ځائے موندے خو تر اوسه د ډېرو کمو په حقله تحقيق شوے دے ـ د پښتو ادب په حواله په دغو کښې د ځنو په حقله څهٔ ناڅهٔ تحقيقي يکونه شوي دي ـ په دغه لړ کښې تر ټولو مهمه واقعه د خيبر هغه تاريخي جنګ دے په کوم کښې چې ايمل خان اودريا خان په مشرۍ کښې افريدو او مومندو د صوبيدار امين خان ترمشرۍ لاندې مغل لښکرته سخته ماته ورکړې وه د نوموړي پښتون محقق دوست محمد خان کامل د هغه معلوماتو مطابق کوم چې په خپل کتاب "خوشحال خان ختک" (اردو) کښې کليات خوشحال خان ختک (پښتو) او "تاريخ مرصع" په نوتونو کښې ورکړي دي ـ خوشحال خان ختک په دغه جنګ کښې د مغلو ملاتړ وو او ددې نه پس ئې د مغلو داګيز مخالفت ته ملا تړلې وه خو سيد رسول رسا صاحب د "ارمغانِ خوشحال" (پښتو) په اوږده مقدمه کښې دا رائې غندلې ده ـ د رسا صاحب پهٔ خيال خوشحال خان ختک په دې جنګ کښې په ښکاره خو د مغل سره ملګرے وو ولې پټه صلاح ئې د ايمل خان، دريا خان سره وه او د غسې په حقيقت کښې ددې جنګ

پټ جرنیل هغه وو.

د کامل صاحب خبره واقعیت او حقیقت ته نږدې ده. ده یوازې دا چې تر دغه وخت خوشحال د مغل مرسته نه وه پرېښودې او که په زړه کښې خفه وو خو په پښتنو یې دا اعتبار نه وو چې گنې مغل له به ماتې ورکړي بدکې په "تاریخ مرصع" کښې د هغه د بیاض د اقتباساتو نه هم ښکاره ده چې په دې جنگ کښې هغه سره د ځو زامنو د مغل په لښکر کښې شامل وو او د ماتې نه پس د تاترو په لور پېښور ته راکوز شوے دے. پاتې شوه دا خبره چې په خپلو شعرونو کښې هغه په دې جنگ کښې د پښتنو په کټه خوشحالي ښکاره کړې ده نو دا خبره هم د یاد ساتلو ده چې شعرونه د جنگ نه پس وییلي شوي دي او دا هم ده چې که د پښتنو په کټه یې خوشحالي ښکاره کړې ده. خو کم از کم د دغه جنگ تر حده یې د مغل په ماتې او د امین خان په لویه بې عزتۍ خپل خفگان هم څرگند کړے دے. د دغه شعرونو نه دا هم ښکاري چې د غه وخت د خوشحال بابا د پښتنو په همت او صلاحیت دومره اعتماد نه وو ځکه د دوي په دومره لویه کټه د حیرانۍ اظهار هم کوي. د دې نتیجې ته هغه د پر دوستو رسېدو نکې ښکاري چې د پښتنو هم چاره د مغل بنه ده خو بس یو اتفاق نه لري. د خوشحال بابا همت، ذهانت، توره او مړانه په خپل ځائے د ستائنې ور ده. د هغه سره د رسا صاحب عقیدت په خپل ځائے خو عقیدت د تحقیق بنیاد نشي گرځېدے. رسا صاحب بې شکه چې لوي عالم، فاضل پښتون لیکوال وو خو په دغه لیک کښې د هغوي دا یې او رویه ډېره جذباتي ده. د دلیل او ثبوت په ځائے په تندو جملو او تاوده احساساتو خپله خبره د رنول غواړي. د دې نه علاوه د

خیلو مومندو د علاقې د دوو کسانو جمال خان او عیسیٰ خان د جګړې واقعه ده. کوم چې دوو سترو لوڅونو پښتنو شاعرانو رحمان بابا او عبدالحمید ماشوال په خپلو شعرونو کښې بیان کړې ده.

په تاریخ مرصع کښې هم ددې بیان راغلی دے او ددغه دوارو شاعرانو په حقله لیکو نیکو کسانو کښې څو تنو په دغه واقعه سرسرې خبره کړې ده نو په تحقیقي انداز تر اوسه چا نهٔ ده څېړلې. دغسې د صوابۍ د تاریخي کلي "هند" په نوا کښې د سید احمد شهید بریلوي او سردار یار محمد خان د تاریخي جنګ خبره هم ستر چاربېتي شاعر نور دین په خپله یوه چاربیته کښې کړې ده.

روان شو یار محمد سید وباسي له پښتنخوا
سید له بړې ورکړې الٰهي پروردګاره ! (۱۱)

نصرالله خان نصر صاحب چې د نور دین کومې راغونډې کړې چاربېتې چاپ کړې دي او دهغې په سریزه کښې د شاعر د ژوند په حقله کوم معلومات وړاندې کړې دي نو په هغې کښې د غه واقعه هم بیان کړې ده. خو په تفصیلي توګه یې نهٔ ده څېړلې. د غسې د انګریز استعمار خلاف د پښتنو د آزادۍ د تحریکونو مختلفو واقعاتو هم پهٔ پښتو ادب اثرات غورزولي دي او پهٔ هغې کښې د ځینو په حقله لیکل شوي دي. خصوصاً د قصه خوانۍ او ټکرو د واقعاتو په حقله خو په نظم او نثر دواړو کښې ګڼ شمېر لیکونه موندے شي.

پهٔ دغه لړ کښې د عبدالخالق خلیق کتاب "زهٔ او زما زمانه" د باچاخان کتاب "زما ژوند او جد وجهد" او ډېرو فیسر عبدالوحید "خدائي خدمتګار تحریک او پښتو ادب" (ایم فِل مقاله) د ستائنې وړ کتابونه دي. اګر چې د دغه واقعاتو د پوره تفصیل او پهٔ پښتو ادب ددې د اثراتو په حقله پوره

څېړنه تر اوسه نه ده شوې.

(ج) د پښتنو قهرمانانو شمېر که هر څو زيات دے خو د دوي په ژوند او کارنامو شوي ليکونه ډېر کم دي. د غه شوے کار هم که د کوټلي معيار په تله و تلے شي نو خبره به نوره افسوسناکه شي. په دې ليک کښې په هغه ټولو کتابونو او مقالو خبره نشي کېدے البته د نمونې په ډول د څنې ليکونو ذکو ضروري دے.

هسې خو د اخون درويزه بابا په "مخزن" کښې د بايزيد روښان ذکو شوے دے. د خوشحال خان خټک په "سوات نامه" کښې اخون درويزه بابا ياد شوے دے. د افضل خان خټک په "تاريخ مرصع" کښې د بايزيد روښان او اخون درويزه بابا دواړو په حقله خبره شوې ده. خو د هغه وخت او حالاتو په مناسبت سره د غه ليکونه سرسري او يو اړخيز دي. په د غه حقله دستاڼې ور ليکونه د شلمې پېړۍ په دويمه نيمايۍ کښې اوشو. د مولانا عبد القادر په مشرۍ پښتو اکېډيمۍ پېښور د بايزيد روښان خير البيان خور کړو. په د غه تاريخي دستاوېز مولانا عبد القدوس د قدر ور مقدمه وليکله او د روښان په ژوند او فکرونو د قدر ور بحث وکړو. هم دا اکېډيمۍ له اړخه په خور شوي ليک "مخزن" باندې پروفيسر ميان تقويم الحق کاکاخيل يوه اوږده علمي مقاله وليکله. په د غه ليک کښې ميان صاحب دَ اخون درويزه بابا په حقله د څنې معلوماتو وړاندې کولو په لړ کښې دَ روښان په ژوند او فکر هم رڼا واچوله په د غه ليک کښې ميان صاحب په ډېر کمال سره ددې يوې جملې چې د خير البيان نه وړاندې که په پښتو کښې د دين کتاب نه وو نو د بې دينۍ هم نه وو"[۱۲] د ميان روښان د مذهبي

لے ميان تقويم الحق کاکاخيل مقدمه مخزن

نقطه نظر په حقله د اخون درویزه بابا رائې درسته کوزولې ده. میاں صاحب عالم فاضل محقق دے او دخپلې رائې خاوند دے. نور د شلمې صدۍ نور اکثر پښتانه عالمان د هغه د رائې سره اتفاق نلري. دعبدالاکبر خان اکبر کتاب "روښانیان د مغلو تاریکیان" میاں روښان په دیلونو سره د ښغې لارې ښتنتن کښې.

اګرچې په یک کښې د اکبر صاحب ژبه ډېره سخته او رویه تنده ده نو د "انجمن اصلاح افاغنه" او خدائی خدمتګار تحریک " د مشر په حیثیت هغه په خپله هم د هغه الزامونو او طاقتونو سره مخامخ شوے وو کوم چې د روښان مخ نیوے کړے وو د دغه کبله دُ هغوي په رویه کښې تندي غیر فطري او مصنوعي نهٔ ښکاري. د مرزا خان انصاري په دیوان لیکلي مقدمه کښې همش خلیل صاحب د میاں روښان په وحدت الوجود او شجره نسب خبره کړې ده. نور د خیر البیان او مخزن مقدمې ددې نه زیات معلومات لري. په دغه حقله د قلندر مومند صاحب هغه یک هم د تحقیق د نظره د قدر وړ دے. کوم چې هغه د خیر البیان په هغه ایډیشن کړے دے کوم چې هم د هغه په زیار چاپ شوے دے. په دې لړ کښې تر ټولو زیات د ستائنې هغه کتاب دے کوم چې د افغانستان د پښتو ادبې ټولنې له خوا د حبیب الله رفیع په زیار او اهتمام سره "د روښان یاد" په نوم چاپ شوے او نور شوے دے. په دغه کتاب کښې د یو شمېر پوهانو هغه لیکونه شامل دي کوم چې د بایزید روښان د نړیوال سیمینار په لړ کښې شوي دي. په دغه مقالو او مضمونونو کښې د یو شمېر پښتنو پوهانو د لیکونو نه علاوه د پخوانی سویت یونین د ځنې پوهانو

لیکونه هم شامل دی. په پښتو ژبه د شوي لیکونو سره یوځای د محمد اسمٰعیل مُبلّغ "نگاهی بر تصوّف پیر روشان" (مخونه ۴۳-۵۴) دَ دکتر شاه حسیني جهان بیني پیر روښان (۲۳۷ تا ۲۴۸) د ما نیازوف عبد القادر "نظری به تاریخ دوابط" (۲۹۹ تا ۳۰۸) د پروفیسر انورعلی یف نکاتی چند درباره نهضت روښاني (۳۵۹ تا ۳۶۶) فارسی لیکونه هم شامل دي. دَ فارسی او پښتو په دغه لیکونو کښې د بایزید روښان د فکر و فن، مبارزې او تصنیفاتو په مختلفو اړخونو علمي او تحقیقي لیکونه شوي دي.

په دغه موضوع هغه یک هم دستاښې جوګه دے کوم چې ډاکټر محمد شفیع د انگریزی دَ "انسکلوپیډیا آف اسلام" دپاره کړے او مولانا عبد القدوس د بایزید انصاري په نوم پښتو ته اړولے. دکال ۱۹۵۹ء دَ جولائي، اګست او د ستمبر په مجله پښتو (پښتو اکیډمي) په ۱ تا ۳۰ مخونو خور شوے. ددې نه وړاندې په دغه حقله دکال ۱۹۵۸ء د جولائي، اګست ستمبر د میاشتو په مجله پښتو یک "د بایزید روښان مذهبي افکار" په نوم خور شوے دغه یک یو ډول درانه معلومات لري. اګرچې د روښان د مذهبي افکارو په حقله ئې څه نازړه نازړه او مبهمه خبره کړې ده.

د روښان د مبارزې د نوعیت په حقله د پخواني سویت یونین د یو بل نامتو عالم استاد اسلانوف هغه یک هم دستاښې وړ دے کوم چې د افغانستان نه "د روښانیانو ملي نهضت" په نوم د یو کتابګي په ډول خور شوے دے. په دغه یک کښې نوموړي لیکونکي دغه مبارزه د جاګیردارۍ په ضد طبقاتي مبارزه ګڼلې ده د لیکونکي مقام او خوادي په خپل ځائے د قدر وړ سهي خو زما په خیال هغه ددغه تحریک اصلاحي، مذهبي او قومي اړخ په

نظر کښې نهٔ دے ساتلے - دغه تحریک ئې ډېر ساده او يو اړخيزه ګڼلے او په دې حقله ئې ډېره ساده نتيجه داويستې ده - د بايزيد روښان د ژوند او فکر په حقله د پېښور د پوهنتون د پښتو څانګې يو طالب علم اختر خان هم د خپل ايم فل او پي ايچ ډي دوه تحقيقي مقالې ليکلې دي - خو په دغه مقالو کښې هم په دغه موضوع څهٔ نوے او نا آشنا خبره نهٔ ده شوې او که څهٔ نوې دعوې پکښې شوې ده نو د سرسري معلوماتو په بنياد شکي شکي او نا ذړهٔ ناذړهٔ ده -

اګر چې د بايزيد روښان د ژوند او فکر په حقله ليک کوُنکي اکثر کسان د قدر وړ عالمان فاضلان دي خو! زما په نزد په دغه ټولو ليکونو کښې لاندينۍ کمي محسوسېږي

(i) په دې حقله د ځينې مغلو بادشاهانو د درباري ليکونکيو په کتابونو کښې ليکونه موندے شي - چې د هغې نه ددې تحريک په حقله د مغلو حکمرانانو د دويې اندازه لګېدے شي - خو پهٔ دغه حقله يو ليکونکي هم په پوره ډول دغه خوارې نهٔ ده کړې -

(ii) بايزيد روښان چې هر څوک وو ديوې ټولنې او يو دور او سيدونکے وو - ديو خاص فکر او مسلک خاوند وو - ديو قهرمان د فکر او مسلک اهميت او افاديت هله صحيح اندازه کېدے شي چې کله د هغه وخت د نورو ټولنو د دغه قسمه شخصيتونو د فکر، مسلک او جد و جهد سره موازنه کړے شي خو زما د معلوماتو تر مخه د روښاني تحريک په استاذانو کښې چا دغه خوارې نهٔ ده کړې چې د بيں روښان د وخت د نورو دغسې شخصيتونو سره ئې هغه دغه رنګ موازنه ئې کړې وي -

(۱۱) د ننني تحقيق ذريعې او طريقې ډېرې بدلې دي - نو زمونږ پوهانو او استاذانو په دغه موضوع هم لګه د نورو موضوعاتو د زړو ذريعو او طريقو کار اخستے دے -

د بايزيد روښان نه پس که د هغه اولاد هم څو په موډو موډو توري و هلې دي نو د خپل علمي شان، ادبي صلاحيت او قومي خدمت په برکت ميدان نوشحال خان ختک وهلے دے - هغه د خپل ځان، خپلې کورنۍ، خپل خدمت او خپلو صلاحيتونو په حقله په خپله هم ډېر څه وئيلي دي - د هغه زامنو، نمسو او کړوسو هم ليکلي دي - نو د شلمې پېړۍ عيسوي پښتنو ليکونکيو او بيا په تېره تېره خدائے بخښلي دوست محمد خان کامل په خپل تحقيقي زيار د هغه د خدماتو او صلاحيتونو په حقله دنيا ته دقدر وړ معلومات ورکړو -

هسې نو د ميجر راورټي او پادري هيوز غونډې مستشرقينو نه واخله تر عبدالحى حبيبي او د شتين صاحب پۀ شان پښتنو پوهانو پورې چې چا هم د پښتو ادب په تاريخ او ترتيب څۀ ليکلي نو نوشحال ختک ئې ستائيلے دے او د ستائنې حق هم لري - نو کامل صاحب د نوشحالياتو مستند اُستاد منلے شي او د منلو هم دے - اګرچې خدائے بخښلي کامل د نوشحال ختک د ژوند د ګڼو اړخونو په حقله په اردو کښې د نوشحال ختک او انګرېزۍ کښې " اے فارن اپروچ ټو نوشحال " تر عنوانانو لاندې ليکل کړي دي - پۀ اُردو نثر کښې ميرعبدالصمد په خپل کتاب "نوشحال او اقبال" او پروفيسر پريشان ختک په " پشتون کون " کښې د نوشحال بابا د ژوند او فن پۀ حقله يو شمېر معلومات راغونډ کړي دي او" خدېجه " نومې يوې زنانه

دهغه د ژوند او ادبي خدماتو په حقله په خپله تحقیقي مقاله د پنجاب دَ پوهنتون نه د پي. ایچ. ډي ډګري اخستې ده - ولې د پښتو ادب دَ طالب علمانو د پاره دکامل صاحب هغه تحقیقي لیکونه د قدر وړ دي کوم چې خدائے بخښلي د "تاریخ مرصع" او "کلیاتِ خوشحال" په ترتیب وتدوین کښې د نوټونو په شکل کښې لیکلي دی. په دې حقله د سید رسول رسًا هغه یک هم سره د لېږ جذباتي رنګ د قدر وړ دې کوم چې هغه په "ارمغانِ خوشحال" کښې خور کړي دي -

په دې حقله هغه دوه کتابونه هم د قدر وړ معلومات لري کوم چې د افغانستان د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوي او خواره شوي دي. پهُ دې کښې یو د "ننګیالي پښتون" په نوم د محمد اکبر معتمد او بل د تودیالي پښتون" په نوم د محمد شیرین "سنګري خوږ یانې په اهتمام چاپ شوی دی. په دغه کتابونو کښې د خوشحال بابا د ژوند ادبي خدماتو او ملي مبارزې په مختلفو اړخونو د افغانستان او پښتون خوا عالمانو لیکونه کړي دي. پهُ تودیالي پښتون کښې د خوشحال بابا د رباعیاتو د موضوعاتو په حقله د ذرعثمانوف پښتو لیک ( ۲۵۷ نه د ۲۶۳ پورې ) د محیط اقتصادي، اجتماعي، سیاسي ( ۱۶۷ نه ۱۸۲ ) ترعنوان لاندې د میر محمد صدیق فرهنګ اشعار دری خوشحال خان ختک ( ۲۴۳ تا ۲۵۶ ) ترعنوان لاندې د ښاغلي محمد کاظم آهنګ په دري ژبه لیکونه هم شامل دي -

د غسې په ننګیالي پښتون کښې "د اشعار دری خوشحال خان" ( ۲۷ تا ۲۸ ) ترعنوان لاندې ښاغلي ګویا اعتمادي د آثارِ خوشحال خان ( ۱۱۵ تا ۱۳۳ ) د معصومي عصمتي او د مخ ( ۲۲۷ نه ۲۳۵ پورې ) د مولانا امتیاز علي عرشي

دري ليکونه شامل دي۔ نورپکښې دَ لوړ پوړو تولو نامتو پښتنو عالمانو پښتو ليکونه دي - په د غه پښتو ليکونو کښې دخوشحالياتو د استاد ښاغلي نيکولائي دوريانکوف ليک او دپښتو دکلام د انکشاف په تاريخ کښې دهغه مقام هم شامل دے - اګرچې په دغه ليکونو کښې عبدالله بختاني دخوشحال او اقبال (۴۹ تا ۶۶) عبدالقدير فهيم دَخوشحال او پوشکن" (۲۰۸ تا ۲۱۷) ښاغلي قيام الدين خادم دخوشحال او رحمٰن موازنه (۶۸ تا ۸۹) دخوشحال خان خټک او ځنې نورو ادبي شخصيتونو موازنه کړې ده۔

خو نور چا د دغسې کولو خواري نهٔ ده کړې او د غه کمي دخوشحالياتو په ټولو پښتنو استاذانو کښې (د مير عبد الصمد نه سېوا) محسوسيږي چې هغوي دخوشحال خټک د نظرياتو او ليکونو موازنه د دُنيا د نورو نوموړو ادبي شخصيتونو سره نهٔ کوي حالانکې دخوشحال د شان او مقام د تعين د پاره د غه موازنې پهٔ بنيادي ډول ضروري دي - د پښتو د پياړ ټمنتې اُستاد داکټر اقبال نسيم صاحب هم پهٔ خپله مقاله "خوشحال او جماليات" دغه کمي نهٔ ده پوره کړے شوے - د پښتو اکيډمي د پښتو مجلې خوشحال نمبر او د پښتو سوسائټۍ اسلام آباد له خوا خوره شوې کتاب خوشحال و رحمٰن هم يو شمير مقالې او مضمونونه لري - خو په د غه ليکونو کښې و اتعي نوې خبره نشته -

اګرچې د ذکر شوي ليکونونه علاوه د دغه نوموړي شخصيت د ژوند، ادبي او قومي خدمت په حقله په مختلفو کتابونو او مجلو کښې خواره واره ليکونه شته دے - په د غو کښې اکثر زاړهٔ معلومات او بيا بيا استعمال شوي اصطلاحات تکرار شوي دي - اګرچې ځنې مضمونونه پکښې ده ډېر

ستائنې او ډېر قدر ور دي. ولې په دې لړکښې په شوي ليکونو کښې
که يوخوا د موازنې کمے دے نو بل خوا د تنقيدي نظر نشت وا لے
محسوسيږي او ددې سره سره دا خبره هم ده چې د خوشحال بابا تخليقات
تر اوسه د چلې ليکنې د نېټو په حواله ترتيب نهٔ کړے شو. دا به ګران کار
وي خو دومره ګران نهٔ دے. ځکه چې د هغوي د ژوند اکثر واقعات هم
معلوم دي او په دې لړکښې د وسائلو هم دومره کمي نهٔ محسوسيږي.

د خوشحال خان خټک نه پس چې په کوم نوموړي پښتون شاعر زيات
ليکونه شوي دي هغه د پښتو پېژندلے شاعر رحمٰن بابا دے. د رحمٰن
بابا د ژبې د سادګۍ، د موضوع د آسانۍ، عوامي اثر، صوفيانه خيالاتو
او اخلاقي موضوعاتو په حقله ګڼو کسانو ليکل کړي دي. په د غه ليکونو
کښې د دوست محمد خان کامل "رحمٰن بابا" د داور خان داود "رحمٰن بابا"
په کتابې دول د محمد اعظم اعظم رحمٰن بابا د "اولس شاعر" د کتابګي په
توګه، د رحمٰن بابا په ديوان د سيد رسول رسا ليک د خاص ستائنې ور دے.

ددې نه علاوه د دغه نوموړي شاعر په حقله يو شمېر عالمانو
او د عالمانو خوشه چينو مضمونونه او مقالې ليکلې دي. چې د پښتو په
ګڼ شمېره مجلو، ورځپاڼو او نصابي کتابونو کښې خواره شوي دي.
ځني مجلو لکه پښتو (پښتو اکېډمي) او اباسين (پېښور) په خپلو ځانګړو
نمبرو کښې په د غه حقله يو شمېر ليکونه را غونډ کړي دي په مختلفو
وختونو کښې د مختلفو ادارو او ادب ذوقه کسانو له اړخه د رحمٰن بابا
ديوان چاپ او خور شوے دے. په دغه چاپ شوي کتابونو ځني کسانو
سريزې او مقدمې ليکلې دي. تر دې حده خو دغه ټول ليکونه د قدر

ور دي چې د پښتو د يو ډېر لوی شاعر په حقله شوي دي - نو په دې
کښې د اعظم صاحب يک کښې د رحمٰن بابا د ژبې د سادګۍ په حقله خبره
په دغه موضوع د لوي تحقيق بنياد کېدے شي- رسا صاحب خوادي د ډېره
کړې ده خو دا يې او رويه زړه ده- په دې موضوع د ټولو نه زياته
د ستاينې ور د دوست محمد خان کامل خوادي ده- کامل صاحب نهٔ يواځې
عالم وو بلکې د تحقيق په هنر هم پوهېدهٔ - هغوي په خپل کتاب کښې
د رحمٰن بابا ژوند او شعري موضوعاتو په مختلفو عنوانانو تقسيم کړي دي-
او خبره يې پرې کړې ده - په دغه هره موضوع يې د هغوي د شعرونو په
حواله د هغوي نقطهٔ نظر را برسېره کړے دے - د دې نه علاوه يې نهٔ
يواځې د هغوي د ژوند په حقله غير ضروري او غير علمي خبرې يوې
ډډې ته کړي دي - بلکې د تاريخي حوالو او دليلونو په رڼا کښې دَ
هغوي د وفات په حقله دَ کال ۱۱۱۸هـ د عوىٰ مسترد کړې ده - په دې
حقله دغه دعوىٰ په پټه خزانه کښې دد غه کتاب مؤلف خدائے بخښلي
محمد هوتک بن داؤد کړې ده هوتک چې د رحمٰن بابا ژوند ته د نورو ليکونکيو
په مقابله کښې ډېر نزديکت لري او په خپل ذکر شوي تاليف کښې د هغه شعرونو
په حقله د خپل تاليف په مخ ۹۶ دوهم چاپ (د حبيبي صاحب په زيار په
افغانستان کښې چاپ) کښې کومه لنډه غونډې خبره کړې ده نو هغه کښې
يې د هغه د وفات کال ۱۱۱۸هـ په ګوته کړے دے - نو خدائے بخښلي کامل
د مغليه تاريخ د څښو مهمو واقعاتو او په هغې د رحمٰن بابا د تاثراتو په
رڼا کښې دې سره اتفاق ونکړو او هغه يې د دغه کال نه وروستو هم څو
کاله ژوندے ثابت کړے دے - د داور خان خوادي په خپل ځائے د قدر

ورسهي نو د رحمٰن بابا د ژوند او شعري موضوعاتو په حقله نوي معلومات نهٔ لري - د غسې دد غه نوموړي شخصيت په حقله د نورو اکثرو کسانو په ليکونو کښې هم څهٔ نوي را ئې او رويه نشي موندے - بلکې اکثر کسان نو د لفظونو او جملو ترجمه هم د هاغه ځايه وړاندې نهٔ دي تلي تر کومه ځايه چې عبدالحي حبيبي ، صديق الله رشتين، امير حمزه خان شنواري او تقويم الحق کاکاخيل په خپلو مضمونونو او مقالو کښې خبره رسولې ده - حقيقت دا دے چې د رحمٰن بابا د کلام د اثر جادو او د شخصيت د تقدس دائره دومره قوي ده چې کهٔ د هغه په حقله څوک ليکل کوي او د کامل نظر څښتن نه وي نو د هغه څو اصطلاحاتو نه به چاپيره پورې لي - په کوم چې هغه څو څو ځله ستا يلے شوے دے -

کوم چې په دغه موضوع د کامل ذکر شوے وړوکے کتاب د هغه تولو ليکونو د شريک وزن نهٔ په علمي نظر دروند ښکاري کوم چې په دغه موضوع شوي دي - خو بيا هم ځنې پښتنو عالمانو د کتاب هغه برخه ناموزون گڼلې ده په کومه کښې چې د فارسي د ځنې نامتو شاعرانو او رحمٰن بابا د څهٔ شعرونو يوشان والے په ډاگه کړے شوے دے - زهٔ د غه عالمان د ډير قدر رجوگه گڼم او د هغوي خبرو ته ډير احترام لرم - خو د هغوي د يو کس په حيثيت په ډير درناوي سره عرض لرم چې کهٔ دوي د انگريزي ژبې د نوموړي شاعر " شاوُس " په حقله د دغه ژبې د هغه محققينو په هغه تحقيقي ليک يو نظر واچولے وے کوم چې هغوي د هسټري آف انگلش لټريچر د مخ ۱۲۹ نه واخله د مخ ۱۵۵ پورې په ۲۷ مخونو خور کړے دے - نو بيا به ئې د کامل صاحب

دیک نه دغه ګیله نه پیدا کیده - په دغه یک کښې د شاوُسر د اهمیت، ضرورت قابلیت او شاعرانه عظمت ستائلو په څنګ څنګ کښې د هغه په تخلیقاتو کښې د لاطیني او فرانسیسي ژبو د فن پارو اثرات او ژبارنې هم په ګخښنه کړي دي - شاوُسر په انګریزي ادب کښې هغه مقام لري کوم چې په فارسه کښې د رودکي، په پښتو کښې د خوشحال خان خټک او بنګاله کښې د ټیګور دي - خو یو انګریز هم په دې تحقیق تندے نه دے چونلے. ځکه چې تحقیق - تحقیق وي او انسان د خپل چاپېرچل نه اثر او تاثر قبلوي - د هغه د نقطه نظر زبلې او دیښانګي نتول او د هغه د اثراتو دائره معلومول د محقق کار دے -

د خوشحال خان خټک او رحمن بابا نه پس عبدالحمید ماشووال د پښتو ادب مهم شخصیت ګڼلے شي - خدائے بخښلي حبیبي په خپل "تالیف پښتانه شعراء" کښې دریم لوئي اُستاد شاعر ګڼلے دے او. د هغوي د دغه رائې سره تو اوسه چا اختلاف نه دے کړے -

اګر چې د لوغوتو پښتنو شاعرانو په تذکرو کښې د حمید بابا ذکر دیو اُستاد شاعر په ډول اکثر شوے دے خو د دوي په حقله هغه هومره څه نه دي لیکلي شوي کوم چې د دوي حق جوړیږي -

په ځانګړي یکونو کښې ئې د خدائے بخښلي نعیم شاه نعیم کتابګے عبدالحمید ماشووال " او د خواجه سائل "عبدالحمید بابا دستانښي ورو دي -

نعیم د حمید بابا د شخصیت سره بې کچه عقیدت لرلو او په خپل دغه یک کښې د دغه عقیدت سره سره د اخبره په وثوق سره کړې ده

چې عبدالحمید ماشوخیل نه وو او نه په د غه علاقه څهٔ د اسې قسمه خپل
شته بلکې د ماشوګګو د اوسېدونکي په حیثیت ماشووال کېدے شي - البته
د سائل صاحب کتاب رو بیے ځو نیمګړے کوشش دے - ځکه چې د حمید بابا
په حقله کتاب لیکل، چاپ کول او ځوروول په خپل ځائے ډیره لویه خبره
ده- "د نیرنګِ عشق" په حقله ئې هم د قدر وړ معلوماتي بحث کړے دے -
ځو ځوړ تهول معلومات ئې زاړهٔ او خبرې روایتي دي - حتیٰ چې
د هغه د زېږون په حقله ئې چې د ریښتین صاحب کومه غوره کړې نېټه
بې د لیله کنلې ده ، خپله ئې هم په هغه بې د لیله نېټه صبر کړے دے -
د مرګ کال ئې په اندازه سره سنه ۱۱۵۵ھ کنلے دے - ځو خپله اندازه ئې دَ
واقعاتو او تاریخي دستاویزاتو په تله نهٔ ده تللې - زما یقین دے چې د سائل
صاحب غوندې عالم فاضل محقق به په خپله هم بې د لیله اندازه د تحقیق
د پاره مناسب نهٔ ګنړي - د غسې د علامه اقبال خودۍ او د پښتنو پښتو په
یوه معنیٰ او یو مطلب ګنړل غلطه ده - دا خبره کهٔ هر څو هم د سائل غونډې
درونډ مشر کړې ده ځو په علمي او معلوماتي لحاظ درست نهٔ ده - د علامه اقبال
خودي په عمومي ډول د انسان او خصوصي ډول د مسلمان د شخصي تکمیل
یو فلسفیانه نقطه نظر دے او پښتو د پښتنو د ګډ ژوند ژواک نوم دے -
د اقبال د خودۍ په غېږ کښې دوزلے شوے انسان د جبریل کوېوان ته
لاس اچوي او د پښتو په زانګو کښې لوی شوے پښتون د خپل مشر سره
په یو کټ کښې ناسته هم مناسب نهٔ ګنړي د اقبال د خودۍ د مرحلو نه
کامیاب تېر شوے انسان د خدائے رضا د خپلې رضا تابع ګرځوي -
ع (خدا بندے سے خود پوچھے بتا تیری رضا کیا ہے)

خود پښتون رضا د جرګې د فېصلې نه هم قدم نشي اړولے۔

سائل صاحب په خپل ذکرشوي کتاب کښې هغه زړه قصه هم رانقل کړې ده د کومې د مخه چې یو سړے د خپلې څهٔ مسئلې د حل لټولو دپاره رحمٰن بابا له راغے نو هغه حمید بابا له ولېږهٔ۔ د غه وخت حمید بابا ماشوم وو او کوځه کښې په تمانچه سور منډې وهلې نو هغه سړي ته ئې په استعاراتي ژبه کښې ډېر معقول جواب ورکړو او بیا ئې ورته اووے چې د مخې نه یې شه اَس به دې اوو هې او په تمانچه سورئې منډې کړې۔

یقیناً چې دا خبره به د حمید بابا د کلي مشرانو کړې وي او سائل صاحب به د هغوي نه اورېدلې وي۔ خو یو محقق کار یواځې د خلقو خبرې اورېدل او نقل کول نهٔ وي د هغې دروغ رښتیا معلومول هم وي۔ دغسې ډېرې خبرې د رحمٰن بابا په حقله مشهورې دي کهٔ دوست محمد کامل د هغې په رانقل کولو اکتفا کړې وے نو د رحمٰن بابا په شان کښې به کمے نهٔ وے راغلے خو کامل به کامل نهٔ وے۔

د خپلې کم علمۍ باوجود زما دا خیال دے چې د سائل صاحب غوندې تجربه کار محقق له دغه واقعه یقیني رد کول پکار وو۔ ځکه چې اوّل خو ماشوم په دغه عمر کښې دومره معقوله او جامعه خبره نشي کولے۔ که بیا هم یو ماشوم څهٔ داسې پیدائشي نابغه وي چې د غسې خبرې هم کولے شي نو بیا د هغه نورې عادتونه هم د نورو ماشومانو نه په بل رنګ وي۔ هغه په کوڅو کښې په تمانچو سور منډې نهٔ وهي او نه تمانچې ته اَس وائي۔ او نهٔ ئې څوک د غه قسمه لوبو ته پرېږدي بلکې د ماشوم والي نه ئې د بزرګۍ او مشرۍ په ځائے کښېنوي او که دا هم

څه یو نوا ته کړے شي چې نو ددې حقیقت نه څوک هیڅ انکار نشي کولے چې دغسې ماشومان په راتلونکي ژوندکښې نورې لویې لویې معجزې ښکاره کړي - خو د حمید بابا دیوان موجود دے - تو سپینې بدرې پورې یې شاعري کړې ده خپل عشق یې ستاپلے دے - خپل شاعرانه توان یې ستاپلے دے - خو نه یې خپلې معجزې یادې کړې دي او نه یې په کتاب کښې داسې رنګ معجزې شته - د هغه د دیوان نه څو دومره ښکارېږي چې هغه د پښتو یو خوږ ژبې نازک خیاله شاعر وو - په پښتو د هغه دومره احسان هم دَ ډیرې ستاینې ور دے او د نورو ژبو څخې خودې قیصې یې پښتو کړې دي -

د پښتنو پیاورو، نومیالو، سیاسي، اصلاحي، مذهبي او ادبي شخصیتونو په حقله د لیکونو په لړ کښې د عبدالحي حبیبي "پښتانه شعراء" د سمندرخان سمندر "پښتنې" (په افسانوي انداز کښې) د حمیدالله کاکړ "نومیالي" د اسد قریشي "سهېلي ستورې" د همېش خلیل "پښتانه لیکوال" دَ عبدالهادي اسیر "پښتانه شاعران"، د سوات ورک شاعران د اقبال نسیم "د رنګ و بو قافله") د حبیب الله رفیع "اواره شیدا" د یو شمېر لیکونکیو په ګډ زیار په افغانستان کښې چاپ شوے کتاب "غني او اجمل" د عبدالرؤف بېنوا "اوسني لیکوال" (د دې توکه)، د پرېشان خټک "د پښتنو ادیبانو او شاعرانو فهرست" د مراد شنواري د خیبر ادب"، دَ خیبر افریدي " د خیبر انګازې" د افضل رضا "بت ستورې") د عبد الحلیم اثر " تېرهېر شاعران" د میور سوراني د بنوں ادب"، د اشرف غمګین د هشتنغر شاعران" د رحیم شاه رحیم واوریښې څوکې"، د فرمان مسافر " ځلنده ستورې" د دې نه علاوه هم په د غه لړ کښې یو شمېر پښتنو لیکونکیو

مقالې او مضمونونه لیکلي دي. د غه ټول لیکونه په خپل ځائے دستاښي وړ دي. خو د غه اکثر په تذکراتي ډول لیکلے شوي دي. اګرچې ځنې خو په د غه ډول لیکل پکار وو. ولې په ځنو کښې خامخا د تحقیقي نوادر ښندره کړے شوې ده. د نسیم صاحب په لیک د تحقیق رنګ نور دے. خو نتیجې ئې نرې دي. د رفیع صاحب لیک د تحقیق په لور یو زړور قدم دے. خو د قدم لاندې زمکه ئې بوښتره ده. کمزورو دلیلونو ئې نتیجې کنجلکې کړې دي. " د غني او اجمل " په حقله ځنې لیکونکي د سیاسي مصلحتونو ښکار شوي دي.

زما مطلب دا نه دے چې کښې دیوې ادبي موضوع یا ادبي شخصیت د څېړنې په لړ کښې د سیاسي حالاتو او نظریاتو خامخا ښندره پکار ده. بلکې زما خو دا یقین دے چې د سیاسي حالاتو او نظریاتو دریا نه بغیر به د غسې کار نیمګړے وي خو هر څه او هر څوک د یو خاص نقطه نظر په کسوټۍ کښې بندول مناسب نه دي او هم د غسې د یو خاص نقطه نظر د خاطره په یک کښې د تنقیدي او تحقیقي عمله د ده کول د موضوع سره ناانصافي ده. د لوغونو شاعرانو تذکرې اکثرو پښتنو شاعرانو، ادیبانو او عالمانو لیکلي دي او د معلوماتو دا غونډولو سره سره ئې د احتیاط نه کار اخستے دے خو د شلمې پېړۍ عیسوي د پښتنو شاعرانو په حقله د همیش خلیل د پښتانه لیکوال (د ومبي ټوک نه علاوه) نور اکثر کتابونه د یکسانیت او یکرنګۍ ښکار دي. د شاعرانو په حقله پکښې یو شان معلومات ورکړے شوي دي او اکثر خو ئې په مختلفو کتابونو کښې د کلام نمونې هم یو رنګ دي. دا ضروري خو نه ده چې په هر کتاب کښې دې د یو شاعر په حقله دا لیکلې شي چې د هغه دا نوم دے، دا تخلص لري، د پلار نوم ئې دا دے په فلانۍ نېټه په فلانۍ کلي

کښې ذېر پېدلے دے اود غسې نورې عمومي خبرې. که د غه هر څه په يو کتاب کښې ذکر شوي وي نو چې په بل کتاب کښې د هغه د ژوندون او فن د نورو اړخونو لټه غونډې ذکر وے. دغسې به دومره فرق نورا غلے وو کوم چې په کوکاکولا او پيپسي کولا کښې وي او د شاعر يا ليکوال په حقله د لوستونکو معلومات به هم زيات شوي وي او که د چا راغونډوونکي نه دومره نوادي هم نهٔ شوې کېدے نو چې په دغه وسائلو څهٔ بل څهٔ ادبي خدمات ترسره کړے شوے وے.

د پښتو ادب د تاريخ په حقله يو شمېر ليکونکيو مضمونونه او مقالې ليکلي دي او يا ئې د خپلو نورو ليکونو په لړ کښې دغه ذکر کړے دے خو په دې حقله د خدائے بخښلي عبدالحي حبيبي د پښتو ادبياتو تاريخ (دوه ټوکه) د صديق الله رشتين صاحب "د پښتو ادب تاريخ" او نواز طائر صاحب "روهي ادب" (دوه ټوکه) د خاص ستائنې وړ دي. دغه درې واړه کتابونه په علمي او معلوماتي حوالو د قدر وړ دي خو د ځنې بنيادي معلوماتو او ځانګړي نظرياتو له کبله د خدائے بخښلي حبيبي تاريخ د خصوصي اهميت جوګه دے. بلکې د دغه کتاب نه وروستو چې چا هم په دغه موضوع په پښتو کښې ليک کړے دے نود قلندر مومند نه سېوا هر چا هم هغه خبره کړېده کومه چې حبيبي صاحب کړېده. ګران نواز طائر صيب هم په خپل کتاب کښې درانهٔ او نوادرهٔ معلومات راغونډ کړي دي خو کهٔ يو خوا د ځنې موضوعاتو تکرار دغه کتاب ثقيل کړے دے نو بل خوا د ځنې کوتلي معلوماتو په دنا کښې دَ څهٔ رائې جوړولو نه د ليکوال څنډې کولو دغه کتاب په تحقيقي رنګ کمزورے کړے دے خو بيا هم چې فاضل ليکونکي په دغه کتاب کښې په څومره نوادر څومره معلومات راغونډ کړي دي نود هغې په برکت به هم د پښتو ادب

د شمېر په څو کتابونو کښې شمېر لے شي -

اګرچې په دغه خاوره لويو لويو تهذيبونو غزونې کړي دي - چرته چې پښتانهٔ اوسي - نو په پښتو کښې په دې حقله ډېر کم څهٔ ليکلي شوي دي - د حبيبي صېب ( د پښتو ادبياتو تاريخ ) په دې حقله څهٔ بنيادي معلومات لري - خو دغه يک دا ادب د تاريخ په ذکو کښې پهٔ ضمني ډول را غلے دے - د پروېش شاهين صېب" ګل ورېنې څوکې " نومې کتاب هم په دې حقله څهٔ نهٔ څهٔ معلومات لري - اګرچې شاهين صېب عالم فاضل انسان دے خپل صلاحيتونه ئې د تحقيق مېدان ته سپارلي دي - خو د دغه کتاب د اکثرو علمي مقالو معلومات ذاړهٔ دي - " ايلم د تاريخ په رڼا کښې " تر عنوان لاندې ( ۲۶ - ۵۱ ) مخونو باندې يک شوے دے - په دغه يک کښې د غه غر په عمر کښې د سوات د زمکې همزولي ګڼي - ( ۵۷ مخ ) او دغه خبره کهٔ يو خوا په سائنسي ډول درسته نهٔ ښکاري - ځکه چې د نورو غرونو غونډې په دغه غر هم په يقيني ډول د زمکې نه ورستو وجود موندلے وي نو بل خوا په علمي ډول هم دېو ځائے د تاريخ په حقله د غسې عمومي دائې مناسب نهٔ وي - ولې بل خوا ئې د دغه غر نوم د يو داسې زوړ تهذيب نوم ګڼلے دے چې د کوم د نخښو نښانو او رنګ روغن په حقله په دغه مقاله کښې د وه ټکي هم نشته - د دغه غر په سر د رام چندر جي د کلونو کلونو اوسېدو ذکو هم کوي خو د خپلې دعوې په حقله هېڅ د ليل ، ثبوت او حواله ضروري نه ګڼي - حالانکې فاضل ليکونکے د د غسې دعوو په لړ کښې د ثبوتونو او حوالو د اهميت نه ښکېله خبر دے د مقالې په آخر کښې د دغه غر په حقله د سمندر خان سمندر اوږد نظم په پوره ډول را نقل کول هم

دیوي علمي مقالې د شان مناسب نهٔ ښکاري -

او کله کله نو سړے حیران شي چې د شاهین صیب غوندې لوي عالم او تجربه کار لیکوال نه د خپلو لوستونکو سره څومره توقع کوي او کهٔ په خپلو موضوعاتو پوهې خندا کوي - د "پښتو" تر عنوان لاندې ئې (۲۸ - ۱۹) صرف دومره خبره کړېده چې د حکومت یا قانون د اتلو نه وړاندې په سوات کښې یو دور وو چې هغې ته به ئې (پښتو) وې او د هغې دومره خوبئ او دومره خامئ وې - د غه دوره د پښتنو په هر علاقه تېره شوې ده

تر دغه عنوان لاندې د دغه معیار د لیکونکي نه لوستونکي نور توقعات لري- دغه حال ئې د هغه لیک دے کوم چې د بدهمت او پښتنو تر عنوان لاندې (۵۹ - ۲۹) شوے دے - د بدّه د پیدا ښت ځائے ځائې، تبلیغ او تعلیماتو په حقله ئې هغه خبرې کړې دي کومې چې په دغه حقله د عام سکولونو د ماشومانو د کورس په کتابونو کښې هم موندے شي -

زهٔ د پښتو ادب د یو مات ګوډ طالب علم په حیثیت د شاهین صیب علمي شخصیت او تحقیقي مشغلې ته په ډېر درناوي ګورم خو د هغوئ د دغه لیک په حقله مې دغه څو خبرې (په ډېر معذرت سره) کول ځکه ضروري وګڼلې چې د هغوئ غوندې عالم فاضل لیکونکي د قلم نه وتې خبرې د تاریخي سند په توګه وړاندې کېدے شي او کهٔ د هغې کمي په وخت په ګوته نهٔ کړے شي نو د خپل وخت نو څه چې د اتلونکي څو نسلونه هم تېر یستې شي -

د دې خاورې د ځنې تهذیبي اثارو په حقله زلمي ارکیالوجسټ شاه نظر بېنوا د شهباز ګړې د تاریخ زیارهٔ ارځونه (چاپ مجله پښتو اکتوبر ۱۹۸۲ء) او ګندهارا آرټ (چاپ مجله پښتو فن وفنکار نمبر) تر عنوانانو لاندې

علمي او معلوماتي مقالې ليکلې - ولې د دغه ليکوتونه پس لکه چې ښاغلي دَ ليکلو ستړے شوے وي - يا ئې د خپلو آثارو نحوړولو زړهٔ موړ شوے وي او يا ئې زما د نظره يک نهٔ وي تېر شوے - کهٔ ما نه وي لوستے نو د ا په زما ځانګړې بد بختي وي نو په نوړو دوارو حالتونو کښې به د ښاغلي شاه نظر د غه رويه قومي تاوان وي -

۲ - د پښتو ادب په تحقيقي پښنګه کښې يوه لويه برخه د شلمې پېړۍ عيسوي د پښتنو ليکو نکيو د هغه خدماتو ده کوم چې دوي د لوغونو پښتنو شاعرانو د ژروند ژواک او ادبي آثارو راغندو ونې ترتيب او تدوين په لړ کښې ترسره کړي دي -

د غه نحواري د مقدمو، د سريزو، نوټونو او فټ نوټونو په صورت کښې د دغه کتابونو په پاڼو خوره ده - په دې لړ کښې د عبد الحي حبيبي له اړخه د محمد هوتک په "پټه خزانه (افغانستان چاپ) مقدمه او نوټونه (فارسي) د خدا ے بخښلي دوست محمد کامل مومند له اړخه د تاريخ مرصع مقدمه او نوټونه) د کليات خوشحال ترتيب وتدوين، د سکندر خان ختک په ديوان سريزه نما مقدمه - د ګل محمد نوروزي له اړخه د خوشحال خان ختک کليات " ر وبے تهوک) ترتيب وتدوين او نوټونه د مولوي احمد له اړخه د عبد الرحمن بابا د ديوان تصحيح، د سيد رسول رسا له خوا د ارمغان خوشحال" مقدمه د رحمن بابا ديوان" ترتيب وتدوين او نوټونه ا دَ صنوبر حسين کاکاجي، کامل مومند او قلندر مومند په شريک زيار د "رحمن بابا کليات" ترتيب و تدوين، نوټونه -

د قاضي عبد السلام له خوا د رحمن بابا د ديوان ترتيب و تدوين دَ

قاضي هدايت الله د "ديوان احمد شاه ابدالي ترتيب وتدوين د قاضي عبدالسلام

د ديوان علي خان شرح او تصحيح ، د ميان تقويم الحق کاکاخيل د ديوان علي خان

مقدمه د قاضي عبدالسلام د حافظ الپوري د ديوان شرح ، د مولانا عبدالشکور

د خوشحال خان خټک د دستارنامې او افضل نامې تصحيح ترتيب او تدوين

د همېش خليل له خوا د ديوان مرزا خان انصاري ؛ ديوان اشرف خان هجري ،

ديوان قنبر علي اورکزي ، ديوان بېدل ، ديوان بابا سعيد ، ديوان معزالله

خان مومند ، ديوان کاظم خان شيدا ، د حميد شاه وګړا ، د خوشحال خان

طب نامه ، باز نامه ، فراق نامه او سوات نامه د ترتيب ، تدوين ، سريزو

او مقدمو ليکل ، د قلندر مومند له خوا د محمدي صاحبزاده په ديوان

مقدمه او ټوټونه د ادبي نوادر الحق له خوا د عبدالحميد په دُر و مرجان

او عبدالقادرخان خټک په حديقه خټک مقدمې / سريزې د نصرالله خان

نصر په "ديوان عبدالعظيم رانيزي" او د نور دين چاربيتي د سريزو

او مقدمو ليکل ، د رحيم شاه رحيم د ديوان احمد دين طالب ديباچه او

حاشيه . د ذلمي هېوادمل له اړخه د عبدالحميد په ديوان (افغانستان چاپ)

مقدمه د ستاينې وړ ليکنه دي - د دې نه علاوه د پرېشان خټک ،

محمد نواز طائر ، مولانا عبدالقدوس ، خيال بخاري ، پردل خټک ، راج ولي شاه

خټک ، او د پښتو اکېډيمې د څېړنې نورو غړو له اړخه د ميان نعيم متي زي ،

خواجه محمد بنګش ، معزالله خان مومند ، په ديوانونو مقدمې ، د طالب رشيد

په "ګل صنوبر" د عبدالقادرخان په "ګلدسته" د فياض په "شهزاده بهرام

او ګل اندامه") د صدر خان خټک په دلی او شهي ، "آدم درخانۍ ، د

جميل بېګ په مناقب جميل بېګ او دغه رنګ د يوڅو نورو آثارو سريزې ،

مقدمې او نوټونه دستاسې ورديٍ -

ددې نه علاوه د افغانستان کښې شمېر پښتنو عالمانو د ځينې لرغونو پښتنو شاعرانو لکه دولت لواڼي، واصل روښاني، اشرف خان هجري، دَ عبدالقادرخان خټک - د کاظم خان شيدا، يونس، قلندر اپريدي، شمس الدين کاکړ، حنان بارکزي، جمعه بارکزي، پير محمد کاکړ، احمد شاه بابا په ديوانونو او د عبدالحميد په نېرنګِ عشق، دخوشحال خټک په رباعيانو، بازنامه، دستارنامه، طب نامه، سوات نامه، دعبدالقادرخټک په يوسف روزليخه او دغسې د نورو آثارو سريزې، مقدمې او نوټونه ليکلي دي-

ددې سره د مراد شنواري هغه مضمون هم د قدر وړ نواري ده کوم چې هغه "زمونږ قلمي نسخې" د سرخط لاندې ليکلي دي - او د پښتو اکېډمي پېښور د مجله "پښتو" کال ۱۹۵۹ء د جولائي اګست، ستمبر او اکتوبر- نومبر، د سمبر ۱۹۶۱ء د جنورې نه تر د سمبره پورې شمارو کښې خور شوي - د دوې نه ورا ندې سيد انوار الحق "زمونږ زړې قلمي نسخې" تر عنوان لاندې د کال ۱۹۵۸ء د جولائي، اګست، ستمبر په شماره کښې هم دغه رنګ مضمون ليکلے دے - په دغه مضمونونو کښې د هغه قلمي نسخو د سائز، رنګ، کاغذ، حالت او ځائے ځايګے په حقله معلومات وړاندې کړے شوي دي کوم چې د پښتو اکېډمۍ په کتابتون کښې هغه وخت خوندي کړے شوي وي- د ځينو نسخو نه ئې څه شعرونه هم د نمونو په دول وړاندې کړي دي-

زمونږ دد غه ټولو عالمانو، فاضلانو د غه ټولې خوارې د قدر وړ دي خو د شعري آثارو په ترتيب او تدوين کښې ئې د تاريخ خيال نهٔ دے ساتلے - د غسې لوستونکو ته دخپل شاعر د ذهني سفر اندازه نهٔ لګي - بې شکه

پخي زمونږ د اکثرو لرغونو شاعرانو د ژوندون او مرګ نېټې په وثوق سره نه دي معلومې نو د هغوئ شعري آثار و ته نوبه ترتيب ورکول نوره ګران کار وي - ولې که د ا خبره په نظر کښې ونيوے شي چې د فن او موضوع دواړو د نظره د هر شاعر تخليقي صلاحيت د ژوند په لار سفر کوي نو بيا د هر چا په کلام کښې د هغه د تخليقي سفر پړاونه او پړاوُنه په نخښنه کېدے شي - د ټولو لرغونو شاعرانو نه سهي د څنې کسانو کلام نو تر ډېره حده د غسې تاريخي ترتيب مونده شي -

د دې نه علاوه په دغه ليکونو کښې هغه سياسي، معاشي، اخلاقي او ادبي ماحول هم په نظر کښې نه دے نيولے شوے په کوم کښې چې دغه شاعرانو ژوند کړے او د هغوي فکر و فن ترينه رنګ او دنيا اخستې ده - حالانکې د تحقيق د نظره د شاعر / ليکونکي د ژوند ژواک لار دې چارې او د چاپېرچل مختلف اړخونه ډېر اهم وي - خو بيا هم په دغه کسانو کښې د ډېرو خوارۍ دستائنې وړ دي -

په دې لړ کښې د همېش خليل زيار تر هر چا زيات دستائنې ور دے - هغه په يوائې ځان کښ شمېره کتابونه راپېدا کړي، په هغې ئې مقدمے ليکلي او هغه ئې د چاپ او خورونې د عمله تېر کړي دي -

اګر چې هغه په خپلو مقدمو کښې هغه ضروري احتياط او علمي خوارئ نه ده کړې کومه چې په هغه غوندې عالم فاضل د دغه آثارو حق جوړېدو نو کېدے شي چې د کار د زياتي او بېړې په وجه هغوي دا سې نه وي کړے شوي ولې که هغه په دغه يو کتاب هم هيڅ نه وې ليکلې نو بيا به هم د هغوي خدمات لاثاني او لافاني وي ځکه چې د دغه هومره

کتدرو کتابونو ناپیدا کول او نوروله دومره لوی کار دے چې هم دهغه
هومره لوی سرے یې کولے شي ـ

په دغه میدان کښې تقویم صاحب لوی نوم لري ـ اګرچې هغه دَ
مقدمو استاد دے خو مقدمه باز نهٔ دے ـ د خپل قلم په سرې هر وخت
د احتیاط او د احتساب څوکیدار کینښنولي وي ـ د خپل ژوند اوږده، خوږه
او علمي مقدمه یې د اخون درویزه بابا په "مخزن" لیکلي ده خو د استاذیه
رنګ یې په هغه مقدمه کښې جوت دے ـ کومه چې یې د علي خان بابا پـهٔ
دیوان لیکلي ده ـ په دغه مقدمه کښې خو یې دا په وثوق سره وښلي
دي چې دغه علي خان د خوشحال خان ختګ کروسے محمدعلي نهٔ دے او ددې
خبرې پیروي یې نورو ته پرېښودې چې علي خان ختک دے کهٔ محمدزی
دغسې یې د هغه د شاعرۍ د دورو متعین کولو د پاره یوه داسې عجیبه لارخپله
کړې ده چې لوستونکي خو پهٔ ځان پوهېږي خو د علي خان بابا سره د ږمندو
زړونو آخري اسرې ته رسېدلے وي ـ

مقدمې د قلندر مومند صاحب د ستاښې وړ دي ـ هغوي نه یوا ځې
د رحمن بابا د کلیاتو په سمون او تدوین کښې د کاکاجي او کامل نیمګړے
کار ترسره کړو بلکې د تحقیق د نظره یې په دغه کار کښې پهٔ زړهٔ پورې
پرا ختیا راوسته ـ ددې نه علاوه د محمدي صاحبزاده پهٔ دیوان او دَ
بایزید روښان په خیر البیان د ستاښې وړ علمي مقدمې ولیکلې ـ
د قلندر صاحب د مقدمو سره اختلاف کیدے شي خو دا حقیقت به هر څوک
مني چې د هغه یوه دعوی هم بې دلیله نه وي ـ د دوي غوندې نور
ځنې عالمان لیکونکي هم په دغه لحاظ د ستاښې وړ دي ـ خو پهٔ دغه

رنګ تحقیق کښې د دوست محمد خان کامل خدمات د ډېرې ستائینې وړ دي. په دغه لړ کښې د مقدار په لحاظ نو ، هم د هغه همسري کولے شي بلکې د هغه نه څو قدمه وړاندې تلے شي. خو د معیار په میدان کښې ورسره هیڅوک نهٔ شي ېللے. هسې خو ځ هغوي په هر څ خواره کښې دیوعالم فاضل محقق د وینو رنګ بر بېښي خو د ا فضل خان ختک د تالیف "تاریخ مرصع" مقدمه او نوټونه ئې مثالي خواري ده. په مقدمه کښې ئې د دغه تالیف په موادو، موضوعات، ترتیب او اهمیت زړهٔ پورې خبرې کړي دي په نوټونو کښې ئې د مولف ځ موضوعاتو دعوو او ذکر کړي واقعاتو په صحت رڼا اچولې ده او چې کله ضرورت پېښ شوے دے نو نو ، نوټونه ئې هم لیکلي دي د خپلې موضوع په حقله ئې معلومات زیات دي او د خپلو معلوماتو په رڼا کښې ئې نهٔ په رشتیا ؤ سترګې پټې کړي دي او نهٔ د مصلحت په تمل تنوتے دے او نهٔ ئې د توازن مرکه خفه کړې ده.

د پښتو ادب په زړو آثارو د مقدمو لیکلو، هغې ته په ترتیب ورکولو او د هغې د متنونو د درستولو په لړ کښې د افغانستان یو شمېر پښتنو لیکوالو په زړهٔ پورې خوارې کړې دي په دغه لړ کښې کړي نومونه او بېلا خواره د ستائینې وړ دي خو پهٔ لنډه به دومره ووایم چې خدائے بخښلي عبدالحی حبیبي نه واخله تر زلمي هیوادمل پورې هر یو تن په دغه میدان کښې د خپلو علمي صلاحیتونو په زور په خپلو پښو ولاړ دے. د پټې خزانې په لړ کښې د حبیبي د خوارې نه واخله د حمید بابا په دیوان (افغانستان چاپ) د هیوادمل د خوارې پورې هره خواري د صفت جوګه ده. د تحقیق په میدان کښې د افغانستان په خاوره یو داسې روایت جوړ شوے،

یو داسې ماحول پیدا شوے چې د چل ول او للو پتو د پاره پکښې ځلے نشته او که چا د غسې ټن په د غه نیت او اراده د غه میدان ته د ننګلي دي نو ماتې یې خوړلې ده - دا نه چې هلته د تحقیق په میدان کښې د غسې کسان نهٔ وو یا نشته - بې شکه وو هم او شته هم خو د هغوي شمېر ډېر کم او رنګونه خړدي ولې دا روایت په پښتو ځوا کښې نشته - دلته که هر څو څنې کسانو په دې حقله دستاښې ور علمي خوارے کړي دي نو یو ماحول نه دے پیدا شوے - عام لوستونکي په د غسې لیکو نو کښې دلچسپي نهٔ لري او اکثر کسان چې د غسې لیکونه کوي نو هغوي یې دلیل وبرهان او ثبوت ګواه د خپلې دعوې پهٔ اوګو بار ګڼي - په دې لړ کښې سرے د ګڼو کسانو نوښونه اخستے شي او ګڼو ځوارو ته ګوته نیوے شي - ځکه چې د دې میدان پهٔ دغه لږ و غونډې کسانو کښې هم د دغه ډول کسانو شمېر زیات دے - ځو زهٔ د نمونې په ډول د خپل یو قدرمند دوست رحیم شاه رحیم په هغه ځوارے خبره کوم کومه چې هغه د "دیوان احمد دین طالب" په لړ کښې کړیده - د رحیم صاحب د معلوماتو مطابق احمد دین په سوات کښې څنګه د ډېرش کاله ژوند کړے دے - په آخر کښې د مردان ضلعې ته د صحبت استاد کره تلے دے - سوات ته د راتلو نه وړاندې یې په فوځ کښې نوکري کړې ده - شاعري یې د سوات په ماحول کښې وده موندې ده او د سوات په خلقو ډېر اثر لري - د احمد دین د غه دیوان څهٔ موده وړاندې د سوات سید و شریف یو عالم فاضل مرزا آصف خان سره د خپلې مقدمې چاپ کړے وو - د غه سړے د سوات د با چا صاحب درباري مرزا وو - ن سبا د سوات په عدالتونو کښې د وثیقه نویس په حیثیت روزګار لري - او تر ن ورځې په مرزا صاحب

مشهور دے - مرزا صاحب ددغې نوموړي شاعر دژوند په حقله ډېر معلومات لري۔ خو شايد چې دومره لوړې دعوې ئې مناسب نهٔ گڼلي - د احمد دين په حقله هم دغسې دعوې د صوابخر زيدې نومې کلي خلق هم لري -

د احمد دين زمانه دومره لوړې نهٔ ده تلې - د زيدې هغه حجرې خلقو ته معلومې دي په کوموکښې چې هغه شپې ورځې تيرې کړي دي - د هغه کسانو نومونه او کرهٔ وړهٔ خلقو ته ياد دي د چاسره چې د هغه تعلق او ناسته پاسته وه - د هغه هلکانو تاريخ جغرافيه خلقو ته معلوم دي دَ چا سره چې د هغه مينه وه د هغه شعرونه اوس هم دد غه کلي په حجرو او بيټکونو کښې زلمي په ډېره مينه وائي - په دغو کښې ځنې داسې شعرونه هم شته چې د هغه په چاپ آثارو کښې نشي ليدے او کېدے شي د هغه وي هم نه -

کهٔ احمد دين په نوښار کښې نوکري کړې وي نو بيا رحيم شاه صاحب کولے شو چې د فوځي ريکارډ نه ئې د هغه د زيږون او فوځي ملازمت نېټې راوسيتي وې او کهٔ داسې رشتيا شوي وي نو د فوځي نوکرۍ پرېښودو په وخت به د هغه عمر کم از کم ديرش کاله وو کهٔ د زيدې ژوند ئې د فوځي نوکرۍ نه وړاندې وگڼو - حالانکې په دغه علاقه کښې ددهٔ د فوځي نوکرۍ د کومې هيڅ روايت نشته - کهٔ پنځه ديرش کاله په سوات کښې پاتې شوے وي نو د سوات نه د راتلو په وخت به د پنځه شپېتهٔ کالو په عمر کښې وو- د حالاتو او واقعاتو ښکاري چې د صحبت اُستاد سره ئې هم ډېر کلونه تېر کړي دي نو کهٔ دغه عمر پنځه کاله هم وگڼلے شي نو هغه به د اويا کالو شاو خوا عمر کښې وفات شوے وي - دغه عمر ډېر زيات دے - بيا خاص کر دَ

احمد دین غوندې سختو او تکلیفونو وهلي انسان دپاره خاص کر په هغه وخت کښې چې د موزون خوراک او دارو درملو هیڅ معقول بندوبست نهٔ وو ـ او کهٔ داسې شوے وے نو بیا به ئې لکه د عبدالحمید ماشوال د ډېر عمر شعرونه په نظر راتلي ـ

د احمد دین په دیوان د رحمٰن بابا او علي خان د شعري آثارو ډېر اثر دے ـ حتیٰ چې د هغوي د ځنې مشهورو غزلو په زمکو ئې غزلې لیکلې دي ـ که هغه وخت په سوات کښې د رحمٰن بابا کلام شهرت لرو نو لرو به ئې خو د علي خان کلام به د غه وخت سوات ته نهٔ وو رسیدلے ـ او که احمد دین د غه اثر د هشنغر نه وړے وي نو بیا خو به هغه سوات ته د تللو په وخت یو داسې پوخ باشعوره شاعر وو چې د علي خان په خوند رنګ او اثر تاثر به هم پوهېدو ـ ځکه چې علي خان په خپله داګیله کړې ده چې پښتانه زما د شعر په مضمون نهٔ پوهېږي ـ

پښتانهٔ به د مرزا شغل ونه کا
کهٔ خبر زما د شعر په مضمون وي

ودې نه په آخوا د "طالب" په شاعرۍ کښې د سوات د ژبې او ماحول اثر هم نهٔ ښکاري بلکې د هغه شاعري خو چې د کوم اړخه هم ګورې نو د هشنغر، مردان او صوابۍ په رنګ کښې رنګ ښکاري ـ کهٔ د سوات د شاعرانو ادبي آثار په نظر کښې ونیوے شي نو سړے په یقین سره وئیلے شي چې د غلته هیڅ کله هم د احمد دین د شاعرۍ ډېر اثر نهٔ دے پاتې شوے او کهٔ وي نو پکار وه چې رحیم صاحب خپلو لوستونکوته په نخښه کړے وي ـ زهٔ د رحیم شاه صاحب نوري کړل نهٔ غواړم زما په

خیال دغه دغه کار اوس هم د ډېرو ډېرو مستندو مقدمو بازو او دیباچه پردازو نه ډېر سپنهٔ دے د

خو د پښتو ادب د یو طالب علم په حیثیت مې دا خبره ضروري ګڼله چې زمونږ دا کثرو لیکوالو د بې احتیاطۍ او ځان آسانۍ له کبله د پښتو ادب تحقیقي برخه تاواني شوې ده - د تحقیق په نوم د غلطو معلوماتو راتلو ته کېدو سره سره د تحقیق غلط روایات هم عام شوي دي. دځان آسانۍ له کبله د پښتو ادب تحقیقي برخه تاواني شوې ده - د تحقیق په نوم د غلطو معلوماتو راتلو ته کېدو سره سره د تحقیق غلط روایات هم عام شوي دي - په تحقیق کښې د تحقیق دَ اُصولو خیال نهٔ شي ساتلے - د عبارتونو په وړاندې کولو، متروکو ټکو په معنیٰ کولو او حاشیو لیکلو د ضروري احتیاطونو او علمي تموازن خیال نهٔ وي ساتلے شوے او په عمومي ډول هغه عمومي دعوې شوي دي د کومو له کبله چې په تحقیق کښې عمومیت هم راځي او دَ ګمراهۍ امکانات هم پیدا کېږي -

۲- په پښتو ادب کښې یوه نمونه تحقیق هغه دے چې په کوم کښې د پښتو ادب د یو صنف یا یو څو اصنافو په حقله معلومات راغونډ شوي دي یا د هغې صنف نمونې راغونډې کړے شوی یا د هغې په حقله شوې وي -

د شلمې پېړۍ عیسوي په وړومبۍ نیمایۍ کښې پښتو ادب ته نوي نوي اصناف رانقل او دویمه نیمایۍ کښې د نظم او نثر دَ زړو نوو اصنافو د نمونو را غونډولو، تاریخ، ترتیب او هنر په حقله دَ څهٔ لیکلو ضرورت تند شو - اګرچې دا ضرورت مخکښې هم وو او یو څو مغربي

پوهانو په دغه لوړ پام لرنه هم کړي وه چې په هغې کښې د ناورتي "گلشن روه" د ډيلي چاپ او د جيم دار، مستتر - د پښتو ټولنې کابل چاپ د ناران برتي د پښتو متلونه (ژباړه او چاپ د افغانستان د علومو د اکاډمي) او په ورستي وخت کښې دګ - ف ګيرس د ميړني اولس ادبيات (ژباړه او چاپ افغانستان) د ډېرې ستائنې وړ نخوارې دي (ژباړه معتمد شينواري د کابل چاپ) په پښتو نخوا کښې نصرالله خان نصر او عبدالحليم اثر رومبي پښتانه (اوکه رومبي نۀ وي نو کم از کم رومبي موثر کسان دي) چې دغه کار ته ئې لاس وا چوو - نصرالله خان نصر د نامتو چاربيتې شاعر نورالدين د چاربيتو يوه برخه را غونډه کړه او د پېښور نه ئې چاپ کړه -

عبدالحليم اثر د ځنې شاعرانو چاربيتې را غونډې کړي او د چاپ دپاره ئې پښتو اکيډيمۍ ته حواله کړي چې د هغه ځائے په کتابتون کښې خوندي پرتې دي - د غسې هغه نور هم ځنې آثار او د آثارو خاوندان را پيدا کړو - نو د ډېرې ستائنې وړ ئې "د پښتو ادب دے" - په د غه کتاب کښې هغه د کشف القبور په ځائے د خپل علم، پوهې، تجربې، مطالعې او مشاهدې په زور د پښتنو د جغرافيه او پښتو ادب د شعري اصنافو په حقله پۀ زړۀ پورې معلومات را غونډې کړي دي د مختلفو اصنافو ځنې نادرې نمونې ئې هم را نقل کړي دي - اګرچې د خپلو معلوماتو ماخذونه ئې نۀ دي په ګوته کړي خو د ليک د انداز نه ښکاري چې دغه معلومات هغوي د مختلفو علاقو او مختلفو کسانو د سينونه را بهر کړي دي او د اعتبار وړ دي -

د دوي نه ورستو د پښتو اکيډيمۍ ډائريکټر پروفيسر محمد نواز طائر صيب دې ميدان ته ودنګل او په دې لړ کښې ئې د قدر وړ خدمات ترسره کړل - پۀ

لړ.و ورڅو کښې د پښتو اکیډیمۍ (پېښور) په مرسته "دوهي متلونه"، ټپه اوژوند" کليوالي سندرې، "تاريخي چاربېتې" او روهي ادب" چاپ کړو-

په روهي متلونو کښې ئې د پښتو متلونو راغونډولوسره سره د متلونو په اهميت هم په ذره پورې بحث وکړو- په ټپه او ژوند کښې ئې د څنو نادرو ټپو راغونډولو سره سره د ټپې په جوړښت، اثر او تاثر هم ليکل وکړو. خاص کر د"ټپې معاشرتي"تجزيه تر عنوان لاندې ليک نوي د علمي او تحقيقي نظره ډېرې ستائينې وړدے- په "روهي ادب" کښې د پښتو ادب او لرغونو پښتنو شاعرانو په حقله هم معلومات شته- نو د دغه معلوماتو لويه برخه د نورو کتابونو هم تر لاسه کېدے شي- ولې د پښتو ټپې او د پښتو ادب په حقله د مستشرقينو د خدماتو په لړکښې په ذره پورې معلومات لري-

کهٔ عبدالحليم اثر په پښتو ادب کښې د ټپې د پېژندګلو سره سره د دغه صنف په وزن، بحر او نورو هنري صفاتو بحث کړے دے نو نوازطائرصيب په روهي ادب کښې د پښتو ټپې د وزن، بحر ريښانګې د "رګ ويد" اشلوکونو ته رسولي دي-

د دغه مشرانو نه علاوه نورو هم پښتنو ليکوالو هم د ټپو او اولسي سندرو راغونډولو او ترتيبولو په لړکښې لويې خوارۍ کړي دي- چې په هغې کښې د څنې کسانو په شريک زيار د افغانستان د دولتي مطبوعې له اړخه چاپ شوي کتاب "پښتو لنډۍ" د پښتو اکيډيمۍ له خوا د سلمئ شاهين "ټپه او د شعور رود" او روهي سندرې (ټپې) د داورخان داؤد "پښتو ټپه" (پېښور چاپ) د سيال کاکړ فولکلوري سوغات (د اتڼ سندرې او نارې)

کاکړي، غاړي، بلندي (د اولسي سندرو یو قسم) فولکلوري بوهر (بناري بدلې)
(کوټټه چاپ) پښتو متلونه غروا لې د رولسي شاعرانو سندرې د صاحبزاده
حمیدالله "د کاکړو غاړې" (کوټټه) د عابدشاه عابد "اولسي تکلونه" (کوټټه)
د ابوالخیر ځلاند سیلاب، سید اکبر صابر "یکه زاد" (د ټپو کتاب) د عبدالرحیم مجذوب د
"مروتو کسرونه" د جمیل یوسفزي "نوند توتېې" د غسې په افغانستان کښې
یو شمېر کسانو په دې حقله کار کړے دے - چې په هغې کښې "پښتنې فولکلور"
(افغانستان چاپ) او "پښتنې دودونه" او نورو کتابونه د یادوني وړ دي -

دغه ټول آثار د پښتو ادب درناوے دے - نود تحقیق د اصولو
خیال پکښې نۀ دے ساتلے شوے تحقیق څۀ نوے کار کول وي نوے معلومات
کول وي - یا د زړو موضوعاتو نوي اړخونه رابرسېره کول وي - په یوه
موضوع دیوتن یا یوې ډلې نه پاتې شوے کار ترسره کول وي خو موږ د دغو
درنو نوېو په اکثرو آثارو کښې یو شان مواد راغونډ کړے شوي دي هم
کله چې په ذرګونو دکونو ټپې او سندرې اروته او متلونه د راغونډولو
نوارې ته حېران پاتې دي نو بیا کوم انصاف دے چې دیو تن راغونډ کړے
شوي آثار دې بل تن په خپله نامه چاپ کړي - د غسې د اکثرو ټپو
د راغونډولو او ترتیبولو په لړ کښې د ضروري معلوماتو او احتیاط نه
کار نۀ دے اخستے شوے د مثال په ډول پښتو ټنګرې او "دوهي سندرې"
به واخلو - دواړه د ټپو بشپړ کتابونه دي - دواړه د حروفِ تهجي په
بنیاد ترتیب کړے شوي دي - دواړه د لویو ادارو له خوا نوارهٔ شوي دي -
نو په دواړو کښې نږدې نږدې یو شان ټپې راغونډې کړے شوي دي -
د "پښتو ټنګرې" چې د پښتو د لویو عالمانو ترسترګو وړاندې ترتیب

شوې ولې د دغه کتاب په ۲۶۹ مخ یوه تپه څهٔ داسې نقل کړے شوه ـ

دا مداد خو نشته یادې شته دے

تپول دا نړیزي په رامداد خان فخر کوینه

خو دا قعې حقیقت داسے چې رامداد خان په قبیله مومند وو او د مزکې په لاندې باندې کښې د دا نړیزو دلاسه مړشوے دے او دَ ملاکنډ ایجنسۍ د سخاکوټ نومې کلي په کوفر نومې بانډه کښې ئې قبر وو چې څو کاله وړاندې وران شوے دے ـ بایډ چې د تپې دا نقل کونکو د غه تاریخي واقعه او عداوت په نظر کښې نیولے وي ـ عبدالکافي ادیب هم په خپل یو لیک (د نورې پانړې اردو ترجمه) کښې د څنو تپو دا نقل کولو په لړکښې د رامداد خان په حقله وئیلي دي چې هغه د مردان ضلعې اوسېدونکے وو او د انګریزانو خلاف ئې جنګونه کړي وو ـ ادیب صاحب د چارسدې اوسېدونکے دے او څهٔ موده ئې په درګه کښې د ملازمت په لړکښې تېره کړې ده ـ هرې چند د چارسدې تحصیل آخري کلے دے او کوفر د درګه تحصیل په آخري بانډو کښې (بلکې بانډه نما کلیو) یوه ده ـ د غه دواړه ځایونه یو بل سره په برید پراته دي او یقین لرم چې کافي صاحب به څو څو ځله په هغه لاره تېر شوے وي په کومه چې د رامداد خان قبر وو ـ د ادیب صاحب د دغسې غلطیو نیولو په لړکښې مې د رحمت شاه سائل صاحب دیو ناچاپ مضمون مسوده لوستې وه ـ (روستوئې یوې مجلې ته د چاپ د پاره ورکړه) چې په هغې کښې سائل صاحب یو ځائے لیکلي وو چې کهٔ ادیب صاحب یوه ګولۍ تار غزولے وي نو که یو سرئې د هغه په کلي وي نو بل به ئې د رامداد خان قبر ته رسېدلے وي ـ د غسې چې ادیب صاحب د پښتنو د کوم "لونګین" نومې کالي ته په اُردو

کښې د پوزې کالے لیکلے دے نو سائل صاحب په خپل ذکرشوي مضمون کښې هغه هم خطرناک تیندک گڼلے وو او دا ئې وئیلي وو چې که څوک په "نیلام گهر" کښې د دغه کالي په حقله سوال وکړي او جواب ورکونکي ورته د پوزې کالے اووائي نو غلطي به د چا وي دا نو لویو ورو پښتنو ته معلومه ده چې لونګین د غاړې امیل وي او په دغه حقله په پښتو کښې یو شمېر ټپې او سندرې شته دے ۔

د بده مرغه زمونږ د تحقیق د مېدان اکثر لوبغاړي د دغه مېدان د لویو ژورو نه نهٔ وي خبر ۔ اکثر خپله هم تیندکونه خوري او خپلے لوستونکي هم په تیندکونو خوړو مجبور وي د کتابونو نه علاوه په دغه حقله په پښتو مجله او ورځپانو کښې د مختلفو لیکونکیو له اړخه یو شمېر مضمونونه هم لیکلي شوي دي ۔

د ټپو غونډې په غاړو، کسرونو او متلونو د انقل کولو کښې هم بې ځایه تکرارونه د وخت او د وسائلو بې ځایه زیان شکاري ۔ بدګې په اکثرو وختونو کښې د دې خبرې خیال هم نهٔ وي ساتلے شوے چې کوم متل په کومه علاقه کښې په کومه لهجه کښې وئیلے شي ۔ که د غسې کړے شوے وے د ځیني تکو او لهجو په حقله به د معلوماتو ترلاسه کېدو سره سره دا اندازه هم لګېده چې د پښتنو کومو قبیلو یاد کومې علاقې او سېدونکو د ژوند د کومو تجربونه کومې نتیجې اخذ کړي دي ۔ د دغو اضافو نه علاوه یو شمېر لیکونکیو د پښتو افسانې، ډرامې، ناول، غزل، نظم او نثر په حقله مقالې او مضمونونه لیکلي دي ۔ په دغو کښې ځیني په پښتو مجلو او ورځپانو کښې چاپ شوي دي او ځیني د او بدوالي له کبله

دکتابونو په ډول چاپ شوي او نوارهٔ کړے شوي دي - په کتابي شکل کښې چاپ شوي آثارو کښې د محمد اعظم اعظم "پښتو افسانه"، د گل افضل خان دَ "افسانو افسانه"، د افضل رضا "پښتو ډرامه"، دپښتو نثر تاریخ د یادوني وړ دي - اگرچې د ناول، افسانې، ډرامې او انشایئې په حقله سمندر یوسفزي په خپل کتاب "ادب څه دے"؟ کښې هم مضمونونه لیکلي دي - خو دغه مضمونونه په عمومي ډول ددغه اصنافو دهنرونو په حقله دي - د "پښتو نثر تاریخ" یاره کښې د طاهر صاحب د وهي ادب هم گټور معلومات لري خو په دغه کتاب کښې د دومره گنهو اصنافو او شخصیاتو په حقله خبره شوې ده چې سرے ئې یو صنف ته نشي محدودولے - د غسې د پښتو د نثر د تاریخ په حقله د میان تقویم صاحب د هغه مقدمې معلومات هم د قدر وړ دي کومه چې هغوي د خپل کشر رور تکویم الحق کاکاخیل روغ لیونۍ په بي بي نوره نومې کتاب لیکلې ده - د پښتو نثر د تاریخ په حقله د افضل رضا او بي بي مریم د کتابونو معلومات هغه دي کوم چې د دوي نه وړاندې خدائے بخښلي حبیبي صاحب " د پښتو ادبیاتو تاریخ " (دوه ټوکه) او "پښتانهٔ شعراء" تقویم صاحب د "مخزن" او بي بي نورې "په مقدمو او طاهر صاحب په "د وهي ادب" کښې ځائے په ځائے وړاندې کړي دي - البته دَ دغو دواړو کمال دادے چې دغه معلومات ئې راغونډ کړي دي او ترتیب کړي دي - مریم په خپله مقاله کښې د ځینو کسانو تېروتنې هم په گوته کړې دي - خو د خپل اړخه ئې څه نوي معلومات یا هېر شوي آثار سنهٔ دي را مخې ته کړي -

ددرامې په لړ کښې افضل رضا صاحب په روایتي معلوماتو تکیه کړې ده -

نوټ :- د بي بي مریم د پښتو نثر تاریخ

د ډرامې د روايتي تعريفونو او هنري کړو وړو د بيان نه پس ئې د پښتو ډرامو د ذکر په لړ کښې په کال ۱۹۵۵ء کښې د عبدالاکبرخان اکبرؔ جونګړه نومې ډرامه ياده کړې ځو د کال ۱۹۲۹ء په آخره او د ۱۹۳۰ء په وړومبي سر کښې د هغه د مشهورې ډرامې "خدائي خدمتګار" نوم ئې نهٔ دے اخستے خدائے خير چې د خدائي خدمتګار نه د رضا صاحب څهٔ ګيله ده چې د کتاب په مخ نمبر ۱۵۰ ئې د پښتو د کتابي ډرامو په فهرست کښې هم ځائے نهٔ دے ورکړے - حالانکې د هغه د خپلې وينا مطابق د خدائے بخښلي عبدالاکبرخان سره د هغوي ډېره نزدې پېژندګلو وه - او د غه ډرامه د خپل نوم، موضوع او تاريخي پس منظر په حواله ډېر لوي شهرت لري - د خدائي خدمتګار تحريک د بنياد ايښودو په وخت اتمانزو کښې سټيج شوې وه او په دې کښې کارکونکي کسانو ته انګرېز سرکار سزا هم ورکړې وه - د پاکستان جوړېدو نه پس په کتابي ډول چاپ شوې هم ده -

رضاؔ صاحب د نورو پښتو ډرامو په لړ کښې هم ځان نهٔ دے کړولے - دَ ډرامو او ډراموليکونکيو په نوموتو ليکلو ئې خپل فرض پوره ګڼلي دي - حالانکې د غه هره ډرامه خپله موضوع، مقصد، منظر، پس منظر او خپل کردار ونه لري - د غه هر څهٔ بحث غواړي - علمي بحث او د غه رضا صاحب کولے شو - هغه د خپل کتاب زياته برخه د ډرامې هغه تعريفونه او هنري صفتونو ته سپارلې وه کوم چې د ډرامې استاذانو کړي دي او هر چا رانقل کړي دي او کهٔ د رضا صاحب د غه معلومات هم د هغه معلوماتو سره وتلو کوم چې د اردو ادب يو نوموړي استاد ډاکټر اسلم قريشي په خپل اردو کتاب "ډرامے کی تنقيدی اور تاريخي پس منظر" (د انجمن ترقي اردو له خوا) کښې راغونډ

کړي دي او یا هم د هغوي پښتو غزل د ډاکټر عبادت بریلوي د "غزل او مطالعهٔ غزل" سره او تلونو د ختې ننګ په خپل ځائے څو خبره به هم هغه د اندېښ

د شتیا وي چې

ع " ته چرته پاتې شوې اشنا زهٔ چرته ورسېدم "

ماد انګرېزۍ، فرانسیسۍ یا بلې یوې دېرې پرمخ تللې ژبې د ليکونو

خبره نهٔ ده کړې بلکې خبره مې د اُردو کړې ده او زهٔ داد عوئ هم لرم چې

رضا صاحب ته د تحقیق کولو او د خپلو لیکونو د چاپ کولو او نورو لو دومره استانتیا ګانې

شته څومره چې اسلم قرېشي او ډاکټر عبادت بریلوي ته دي - ما که دَ

اُردو د دوو نامتو لیکونکیو او د هغوي د لیکونو نومونه اخستي دي نو دَ

هغوي په مقابله کښې مې د پښتو د هغه نوموړي لیکونکي د هغه منلې شوې

آثارو خبره کړې ده د کومو د لوستو نه بغیر چې د پښتو طالب علمان د ایم اے

ایم فِل او پی ایچ ډي ډګري ده شي اخستے زما یقین دے کهٔ رضا صاحب

په یوه موضوع د لیک په سلسله کښې خپل ټول علمي صلاحیتونه په

اخلاص سره په کار راولي نو دا سې د قدر ور لیک مخې ته راوړے شي

چې د هرې ژبې د معیاري لیکوئ په مقابله کښې به د پښتو د پوګه

وي -

د افسانې د تاریخ او هنري صفاتو په حقله د ګل افضل د "افسانو افسانه"

په افسانوي ژبه کښې څوړ کتابګے دے - څو معلومات ئې دوایتي او سرسري دي -

د اعظم صاحب کتاب اګرچې د افسانې د هنري صفاتو او د نګونو په حقله هغه

پراخه معلومات نهٔ لري د کومو پرق چې د هغوي په ورستیو مقالو او

مضمونونو کښې ښکاري - خو د افسانې د تعریفونو په شمېر د پرولو او پردو

حوالو ځنډېدلو په ځاے ئې د خپلې موضوع سره کار لرلے او خپل سرئې نوبت کړے دے د پښتو افسانې د مختلفو دورونو په نمائنده افسانو او افسانه نګارو ئې بحث کړے دے - د پښتو ادب د یو طالب علم په حېثیت زهٔ په و ثوق سره داد عویٰ لرم چې د افسانې د ځینې نیمګړتیاګانو باوجود د پښتو افسانې دَ تنقید او تحقیق په لړکښې تر دې وخته دغه بهترین کتاب دے او کهٔ په پښتو کښې د تحقیق د اصولو په رڼا کښې د پښتو کوم یو څو کتابونه د ستائنې ور دي په هغې کښې یو هم دغه کتاب دے -

۳- د پښتو په اولسي شاعرۍ کښې د پښتنو د اولسي ژوند کړهٔ وړهٔ غونډې پرزې، مهم واقعات او حالات خوندي دي - دغه شاعري د پښتنو په غرونو، سمونو، کلو، کوڅو او پولو پټو کښې خوره ده - اول خو ئې شاعر نهٔ وي معلوم او کهٔ څوک اولسي شاعر په خپل وخت کښې د خپلې شاعرۍ په حواله په یوه علاقه کښې شهرت ومومي نو د بې سوادۍ او مجبورۍ له کبله ئې شاعري محفوظه نهٔ شي - د کاغذونو په ځاے په زړونو ولیکلے شي - نو د خلقو په زړونو دومره غمونه وي چې څهٔ وخت پس په کښې څهٔ وران شي، څهٔ هېر شي او څهٔ خطا شي -

زمونږ د ګن شمېره اولسي شاعرانو د شاعرۍ لویه برخه دغسې دَ وخت په ژرنده د ل شوې ده - چا ئې پرواه نهٔ کړې - څو چې د یو مهذب انسانانو د دغه شاعرۍ د اهمیت د مخه ددې په راغونډولو او خوندي کولو پسې ېږې او دوهلي نو د برا عظم پاک و هند ځنې پوهانو هم په دغه لور پام لرنه وکړه خاص کر د رابنډرناتهٔ ټېګور، شاګردانو چې په هغوي کښې دَ "ستیاراتي" نوم تر ټولو زیات د ستائنې ور دے - د دوي نه څهٔ موده پس ځنې

پښتانه شاعران، ادیبان هم په دغه کار بوختي شوي چي په هغوي کښي عبدالحلیم اثر، نصرالله خان نصر، محمد نواز طائر، رحیم شاه رحیم، داورخان داؤد، سیال کاکړ، ابوالخیر ځلاند، صاحبزاده حمیدالله، عابد شاه عابد او د افغانستان یو شمیر پښتانه لیکوال دستائني ورخدمات لري -

اګرچي دغه ذکر شوي کسانو او ځيني نورو نومورو د اولسي شاعرانو د کلامونو او د اولسي شاعرئ د نورو ورو نمونو راغونډولو په لړ کښي دستائني ورخوارئ کړي دي - خو اکثرو کسانو د ټيلو راغونډ و کړو شوو موادو د تحليل او تجزيي نه ډډه کړي ده - حالانکي د تحقيق د اصولو له رويه هغوي ته د غه کار ترسره کول پکار وو - خو بیا هم د اولسي شاعرئ او پښتني ژوند په حقله د تحقيق کولو په لړکښي د غه تر لاسه کړے شوي مواد د ډير اهميت جوګه دي -

۵- تحقيق يو مسلسل عمل دے - د نن ربښتيا د سبا دروغ کيدے شي - د پرون صحيح معلومات د ننني معلوماتو په رڼا کښي غلط ثابتيدے شي - دا د علم په هر ميدان کښي شوي او کيږي - په تيرو څو کالو کښي د پښتو ادب په ميدان کښي هم د داسي تحقيق څو نمونې را مخي ته شوي دي - د ځيني لرغونو شاعرانو د زيږون او مريني نوي نيټي غوره کړے شوي دي - د ځيني تاريخي دستاويزاتو په وجود شک شوے دے -

کامل مومند په خپل تصنيف "رحمان بابا" کښي د رحمان بابا د مرګ هغه کال دروغ کړے دے کوم چي د دوي نه وړاندې مستند و عالمانو ۱۱۱۸ھ ګڼلے وو - هغه په مدلل دول رحمان بابا د دغه کال نه څو کاله پس هم ژوندے ثابت کړے دے - همیش خلیل د مرزا خان انصاري په ديوان خپل ليک کښي

د تاریخي دستاویزاتو په رڼا کښې د مرزاخان په حقله هغه دعوی رد کړې ده د کومې د مخه چې هغه ته یوسفزے و ښکلے شوے وو او دا یې په ثبوتونو سره وښلي دي چې هغه د بایزید روښان نمسے وو۔

میاں تقویم الحق صاحب د علي خان د دیوان په مقدمه کښې دا یې رد کړیده چې کښې هغه د خوشحال خټک کړوسے او د افضل خټک زوي وو۔ البته د علي خان د قبیلوي شناخت خواري یې نوره و ته پرېښودې۔ او د دغه شناخت د پاره د یو شمېر پښتنو لکه قلندر مومند، محمد نواز طائر، همېش خلیل، عبدالحلیم اثر او عقاب خټک تر منځه دا کښل شوي دي۔ که نوره و علي خان محمدزي گڼو نو عقاب خټک د هغه خټکوالے د شک نه بالا گڼلو۔ په دغه حقله د دغه ټولو عالمانو هغه لیکونه چې د مردان په "قند" مجله کښې خواره شوي، د علم او فضیلت نه ډک دي۔ خو د قاضي اثر هغه مضمون په علمي او تاریخي لحاظ د ډېرې ستائنې وړ دے کوم چې د قند ادارې په دغه موضوع د خپله اړخه آخري مضمون گڼلے۔ اگر چې لیکوال د خپل حریف عقاب خټک په حقله ډېره تنده او ترخه ژبه استعمال کړې ده ولې خپله موضوع یې هم په قابو کښې ساتلې ده۔

زلمي هېوادمل د عبدالحمید ماشووال په دیوان (افغانستان چاپ) په خپل علمي او تحقیقي لیک کښې د هغه د ژوند او مرگ په حقله ځینې نوي نوې خبرې را ته مخې کړې دي۔ خو ددې سلسلې د ټولو نه مشهور او تر ټولو متنازعه لیک هغه دے په کوم کښې چې ښاغلي قلندر مومند د محمد هوتک قندهاري تالیف "پټه خزانه" دروغ گڼلې ده۔ پټه خزانه د هوتک تالیف دے۔ او عبدالحی حبیبي یې د تدوین او خوروني ذمه واري ترسره کړې

دي - دد غه کتاب د معلوماتو په دنیا کښې د پښتو ادب تاریخ لیکلے شي - ځکه
چې د پښتو د ځینې لرغونو شاعرانو او لیکوالو نومونه او د هغوي د لیکونو
نمونې په د غه کتاب کښې خوندي دي - خو قلندر صاحب د د غه کتاب د
دروغ ثابتولو په لړ کښې "د پټه خزانه في المیزان" تر عنوان لاندې کتاب
و لیکلو او په هغې کښې ئې دد غه کتاب هغه کمزوري ارخونه په تخنه کړه
دکومو په وجه چې د هغه په خیال د غه کتاب رښتونے نهٔ دے - اګر
چې په دې حقله د قلندر مومند صاحب او د افغانستان د عالمانو ترمینځه
د دې پخوانه اختلاف راروان دے - د پښتو نخوا ځینې نامتو پوهانو هم
په د غه موضوع د افغانستان د عالمانو مرسته کوله او په د غه حقله
قلندر صاحب او د هغه مخالفینو د خپل خپل نقطهٔ نظر وړاندې کولو د پاره
په مجلو او ورځپاڼو کښې مقالې هم لیکلې وې - چې قلندر صاحب خپل باقاعدهٔ
کتاب چاپ کړو نو یو شمېر کسانو د هغه د کتاب په ضد مقالې او مضمونونه
ولیکل - کهٔ قلندر صاحب د خپلې دعوې د پاره پاخهٔ پاخهٔ دلیلونه پیدا کړي
وو نو هغوي هم ورپسې مضبوط مضبوط ثبوتونه راپیدا کړهٔ - د افغانستان
پوهنو زلمو خپل د غه لیکونه په کتابي دول چاپ کړو او نوم ئې ورله "د پټې
خزانې میزان رښتیانې میزان دے" غوره کړو - په د غه کتاب کښې د آمنه صمیم
او د زرین انځور لیکونه په خصوصي دول د لوستې قابل دي - د غو زلمو د
قلندر صاحب دعوی رد کړې ده او د تاریخي سندونو په حواله ئې دا
خبره کړې ده چې "د پټې خزانې" سندونه درست دي - اګر چې دا علمي
جنګ د ېر مهم دے ځکه چې د پښتو ادب په تاریخ بوره دے خو په دې
کښې د همیش خلیل صاحب نه سيوا د پېښور پښتنو لیکوالو په ظاهري

د ول ځانونو له د تماشگیرو حیثیت غوره کړے دے او د همېش خلیل صاحب دویّه هم د حبّ علي په ځائے د بغضِ معاویه په رنګ کښې رنګ ښکاري- دا صحیح ده چې دا علمي جنګ ده یکوال دوسه نهٔ دے خو هغه نامتو عالمان څنګه غلي پاتې شو چې د پښتو ادب د خدمت په نوم په وړو وړو جنګونو کښې غټې غټې برخې اخلي -

۲- په پښتو کښې یو رنګ تحقیق کم سهي خو وجود لري- د غه تحقیق دَ ځنې اصطلاحاتو زیلې، دیبنا نګې، معنی مطلبونه لټول او د ځنې زړو اصطلاحاتو د جوړښت په رڼا کښې نوي اصطلاحات وضع کول دي د پښتنو په مختلفو تبیلو، علاقو او ځایونو کښې ځنې استعمالېدونکي هغه اصطلاحات راغونډول کوم چې د نوي وخت په علمي لیکونو کښې په کار راوستے شي -

یو شمېر پښتنو لیکوالو او پوهانو په دې حقله خواري کړي دي- د هېواد اصطلاح یو شمېر لرغونو شاعرانو په استعمال کښې راوستې وه- قلندر مومند صاحب ددې نه یوه معنیٰ راویستې ده او د پټې خزانې خلاف ئې د خپل دلیل په دول په کار راوستې ده - د هغه سره اختلاف کوونکوئې بله معنیٰ راویستې ده- د غسې دد غه دواړو دلو په لیکونو کښې په دې حقله اوږدې بحثونه شوي دي -

خدائے بخښلي عبدالحي حبیبيّ په خپل کتاب "د پښتو ادبیاتو تاریخ" کښې د کن شمېره اصطلاحاتو په حقله مدلله دعویٰ لرلې ده چې دا پښتني هم لري- ددې پارسو دَ "اویسته" او سنسکرت "د رګ وید" لیکلو په وخت د پښتنو نه خپل کړي دي - او یا دا چې دد غه ژبو مورپښتو ده او د ځان سره ئې د مور دکوره د غه اصطلاحات وړي دي.دَ افغانستان ځنې لیکوالو او پوهانو په دې لړ کښې د قدر وړ خدمتونه کړي دي -چې په هغوي کښې دَ

عبد الحی حبیبي، عبدالروُف بېنوا او صدیق الله رښتین نوموته د خاص یادوني دي - د دوي نه وروسته دوست شینواري، ډاکټر مجوړ زیار، حبیب الله رفیع، زلمي هېوادمل او ځینو نورو کسانو په دې لړکښې د ستاینې وړ کوششونه کړي دي - ډاکټر مجاور احمد زیار چې په ټولو پښتو کښې مثلے او ستندر ژب پوهان هم دے. د پښتو ژبې د ګرامر، لهجو او ځینې اصطلاحاتو د بورښت او ادا په حقله څو کتابونه لیکلي دي - او ځینې نوي اصطلاحات ئې هم وضع کړي دي - دوست شینواري د ځینې زړو اصطلاحاتو د معنو او مطلبونو د وضاحت دپاره د پښتو کلاسیکي ادب د متونو په رڼا کښې د ستاینې وړ خواري کړې ده او د غه خواري ئې د "زړه پانګه" په نوم د افغانستان د علومو د اکاډیمۍ په مرسته په کتابي ډول د نیا ته وړاندې کړې ده -
اګرچې په پښتو کښې د هېوادمل علمي او تحقیقي خوارۍ د ډېرې ستاینې وړ دي - د خپل علم، پوهې، زړګي او ایمانداري په برکت هغه دَ پښتو ادب په هر میدان کښې د ستاینې وړ خدمات ترسره کړي دي خو دَ "زېري" نوم پښتو مجلې د ادارتي ذمه وارو ترسره کولو په وخت ئې د ځان سره نور لیکوال هم د تحقیق او تنقید کارته وکمارل - په دغه مجله کښې د زړو اصطلاحاتو را بهر ته کولو او په استعمال کښې د راوستو سره سره د نوي اصطلاحاتو د وضع کولو د پاره هم بحثونه کېدل - د د غه خوارۍ یوه برخه د زلمي لیکونکي ګل افضل ټکور په خوارۍ د "کره کتنه" په نوم د افغانستان نه دیوې کتابچې په ډول خوره شوې ده -
چونکې د اصطلاحاتو معنې او مطلبونه راویستل او خوروول په بنیادي ډول د "لغت" را غونډونکو کار دي - پښتو کښې د بې نهٔ سهي خو تر یو

حده د لغت په حقله کار شوے دے - چې په هغې کښې دځنې پخوا ستو مستشرقینو سره سره د اوسنی وخت په ځنې اوسنی پوهانو کښې عبدالحی حبیبی، بهادرشاه ظفر، قلندر مومند، سید انوارالحق، پوردل خټک، محمد نواز طائر، راج ولي شاه خټک او یار محمد مغموم د ستائنې وړ کار کړے دے - دغسې دځنې ژبو اصطلاحاتو د جوړښت په مناسبت سره ځنې نوې اصطلاحات وضع کړے شوې لکه د مېږتون په سمون، روغنتون، پوهنتون، کتابتون دا وه په حواله " ونې" (رهفته) د سارنې په مناسبت سارندویه او دغسې نور- خو کهٔ یو نظر زمونږ د لغتونو جوړوونکي افراد دخپلو مجبوریو او ادارو غړي د خپلو ناراستیو له کبله ددې جوګه نهٔ شو چې په مختلفو علاقو او قبیلو کښې وګرځي چې هغه ټکی راغونډ کړي کوم چې دراغونډولو دي او د هغې په هغه معنو ګمان پوئې او خلق خبر کړي په کومو معنو کښې چې د غلطه استعمال شوي او استعمالېږي- افرادو ته خود هغوي د وسائلو د کمی له کبله ګناه نشته ولې د وسائلو لرونکو ادارو غړي هم د تحقیق په لړ کښې د خپلو د فترونه بهر وتل انصاف نه ګڼي- بې شکه چې د فترې د موادو راغونډولو، ترتیبولو، په هغې د بحث کولو او د هغې نه د نتیجو راویستو د پاره انتهائي ضروري وي - خو ددغې ادارو د غړو د پاره ددغه تحقیق په لړ کښې په کلو، کوڅو، پولو، پټو او غرونو سمونو ګرځېدل هم ضروري وي - زمونږ د غسې نیاز بینو ټکي په هغه کتابونو کښې کتلي کوموته چې د دوي لاس رسېدو - د هغې د معنو د وضاحت د پاره ئې د لرغوني شاعرانو د دیوانونو نه شعرونه رانقل کول بوره ګڼلي دي او کهٔ چرته د غسې شعر په لاس نهٔ دے ورغلے نو دیار دوست

او خپلو خپلوانو په شعر ټي لاس بر کړے دے - او که داسې نهٔ دي شوي نو خپل شعر ئې لیکلے دے - د غسې د نوو اصطلاحاتو په وضع کولو او نړوړولو کښې هم مناسب احتیاط نهٔ دے شوے -

۸- اګرچې ژبارنه د تحقیق په کار کښې نهٔ شي شمېرلے او دد غه له کبله مونږ د هغه یو شمېر کتابونه ژبارنې ته تحقیق نهٔ شو ویلے کوم چې د فارسۍ، عربۍ، اُردو، انګرېزۍ او روسۍ نه په پښتو ژبه اړولے شوي دي - خو یو کتاب داسې دے چې د ژبارنې باوجود هم د تحقیق د نظره ډېر مهم دے - د غه کتاب ډاکټر اکبر ایس احمد په انګرېزۍ ژبه کښې لیکلے دے او میاں تقویم الحق کاکاخېل د قلندر مومند په ډاډګېرنه د سیلئیم او کوزما دَ سوات په پښتنو کښې " تر عنوان لاندې ژبارلے دے او د پښتو اکېډمۍ (پېښور پوهنتون) له خوا خور شوے دے - په دغه کتاب کښې د سکندر یوناني د حملې نه واخله د سلطان اویس، شیخ احمد او شیخ ملي تو زمانې پورې او بیا د میاں ګل عبدالودود او پاکستان سره د الحاق تر وخته پورې د سوات د تاریخ د مهمو پېښو او واقعاتو بیان شوے دے خو په دغه بیان کښې د سوات د خلقو نفسیات، ثقافتي کړهٔ وړهٔ او دَ تولنیز ژوند نورو اړخونه په نظر کښې ساتلے شوي دي د سوات د تاریخ او د دغه ځائے د اوسېدونکو د ژوند ژواک په حقله د هر قسمه تحقیق په لړ کښې د غه کتاب د جوت اهمیت جوګه دے -

۹- په پښتو کښې هم لکه د ځنې نورو مشرقي ژبو یو رنګ تحقیق داسې دے چې د ویئیلي، فرمائیلي، راوي او روایت غوندې معتبر اصطلاحات ئې ژوندي ساتلي دي - په دغسې لیکونو کښې اکثر راوي ضعیف او

روایت کمزورے وي او که چرته ویونکي، فرمایونکي مستند عالمان، فاضلان وي را نقل کوونکي مصنف په کښې خپله دائې محفوظه ساتلې وي. بې شکه چې په تحقیق کښې د خپلو معلوماتو درستو ثابتولو د پاره تحقیق کوونکي د خپلې موضوع په حقله د نورو پوهانو دائې را نقل کوي د تاریخي دستاوېزاتو نقلونه او حوالې وړاندې کوي خو د تحقیق مقصد د یوې موضوع په حقله مواد جمع کول نهٔ وي بلکې د حقائقو جاچ اخستل، د هغې تصحیح کول او په هغې خپله دائې ورکول وي.

د دغه رنګ تحقیق په څنګ څنګ کښې یو رنګ تحقیق داسې دے چې هغې ته تحقیق وئېل خو د دغه علمي کار په شان کښې ګستاخي کول دي. ولې د ادب څهٔ بل داسې مېدان هم نشته چې هغه ته وسپارلے شي. د دغه رنګ لیکونو شمېر بېخي زیات دے. په دغه لیکونو کښې د تحقیق د اصولو خیال ساتل خو پرېږده عام علمي اُصول هم په نظر کښې نهٔ وي ساتلے شوي. د خپلې خبرې درستولو د پاره د مستندو دستاوېزاتو حوالې غلطې کړے شوي وي. په ټپو، اړونو، دوړو او متلونو کښې بدلونونه کړے شوي وي په موضوع عمومي، سرسري او فرسوده خبرې شوې وي. هغه جملې او اصطلاحات په کار راوستے شوې وي چې کوم ددې نه وړاندې په سوونو، زرګونو ځله استعمال شوي وي. معلومات غلط روبي ځایه وي. او کهٔ داسې نهٔ وي نو زاړهٔ او فرسودهٔ ضرور وي. ددې خبرې خیال په کښې هم وساتي چې د غه لیکونه دې دَ سرکاري ادارو د پالیسو او نقطه نظره په سمون وي کهٔ د دغه سمون پیدا کولو د پاره یو تاریخي دستاوېز او حقیقت مات ګړشي نو خېر دے.

مثالونه کښې شمېر کېدے شي - نور نمونې په ډول به د پښتو د ا شهوره تپه وا خلو چې :

کهٔ د زلمو نه پوره نهٔ شوه
فخرِ افغانه جینکۍ به دې ګټینه

زما په خیال د نورو هوښیارانو او ایماندارو خلقو غوندې "فخرِ افغان" هم په دې خبره پوهېده بلکې پهٔ دې ډېر ښهٔ پوهېدو چې د وطن نوم د هغه د نوم نه ډېر لوې دے - ځکه خوئې د کښې شمېره ملګرو او خپلو چېلوانو سره د وطن د آزادۍ د پاره هلې ځلې کولې - هغه به په دغسې بدلون کله هم بد نهٔ وي وئیلي نو یو محقق ته دا حق چا ورکړے دے چې په یوه تاریخي تپه کښې دې د خپل غرض د پاره بدلون راولي - اوکهٔ دغه بدلون چا یو سرې یا اداري د هغه د وړاندې کړے وي نو پکار ده چې ذکر ئې کړے وي او بیا محققین هم هغه چې د پښتون مجلې د دیکارډ کتو د عوامٔو هم لوې او د هشنغر او سپدونکي هم وي -

د غسې د یوتن نیم له اړخه د پښتو موسیقۍ او موسیقۍ دَ آلاتو په حقله د ځهٔ تحقیق کولو کوشش شوے دے - نو دغه کوشش هم ډېر سرسري او عمومي دے - په د غسې یکونو کښې د پښتو موسیقۍ دَ خاصیتونه په تخنیک کول ضروري وو د موسیقۍ د هغه آلاتو په تاریخ، جغرافیه او جوړښت، معلومات پکار وو - کوم چې په پښتو موسیقۍ کښې په کار راوستے شي - په دغه آلوٗ د اوریېدونکو سازونو په لے او آهنګ خبره پکار وه کوم چې په دغه آلو اوړی په مضمون یا کتاب کښې د رباب او شپېلۍ تصویرونه جوړول خو د پښتو موسیقۍ په حقله

معلومات نهٔ دي - دغه آلې نور تېرو شلو پنځويشتو کالونه خلق د تپې وې په پرده هم وينې - د موسيقۍ او بيا خاص کر د پښتو موسيقۍ په حقله ليکل ګران کار دے - څو دې ګران کار ته هغه څوک سر ورلاندې کوې چې څوک په ځان کښې ددې د ترسره کولو توان وينې - د موسيقۍ د هنر دَ نزاکتونو نخونو او رنګونو په حقله په اُردو ژبه کښې د استاد سلامت علي خان په نګرانۍ کښې د هغه د دوه زوئو اختر علي او ذاکر علي د "نورنګ موسيقي" په نوم کتاب ليکلے دے چې د اُردو بورډ لاهور له خوا خورٔ شوے دے - هم په اُردو کښې فضل محمد خان د "تحصيل موسيقي" فيروز نظامي، د اسرار موسيقي، ذيډ اے بخاري، "د راګ دريا" په نوم کتابونه ليکلي دي - دغسې په دغه موضوع په اُردو کښې ځنې نورو کسانو هم ليکل کړي دي کهٔ انګريزي، فرانسيسي، جرمني، روسي، عربۍ او فارسۍ ليکونه يو خوا ته هم کړے شي - نو بيا هم کم از کم د اُردو د معيار کتاب څو ليکل پکار دي او کهٔ بيا د دغه معيار هم نهٔ وي نو د دغه ژبې نه خو په آسانه استفاده کېدے شي - يقين لرم چې کهٔ زمونږ ليکونکو د دغه ذکرشوي کتابونو نه هم په پوره توګه استفاده کړې وې نو د پښتو لوستونکو د پاره به ئې په دغه موضوع د معلوماتو او د دلچسپۍ د نظره د اعلیٰ پايې کتاب ليکلے وے کهٔ د موسيقۍ په حقله ليکلے کتاب د راګونو دَ شمېر اجزايې ترکيبي، سر، تال او د موسيقۍ د آلاتو دَ جوړښت په حقله هم معلومات نهٔ لري - نو د لوستونکو په دې کښې څهٔ دلچسپي کېدے شي او د موسيقۍ کومه کمي پوره کولے شي - البته په دې حقله د خدائے بخښلي غلام جيلاني جلالي د پښتو ځانګړې ادب او موسيقي ر افغانستان چاپ) د صديق الله رشتين "د ژوند سندره" رسلسله کنه کابل) دَستانې

وړ معلومات لري. د تحقیق یا د تحقیق په نوم د څهٔ لیکلو د غسې کوشش کونکي کسان اکثر د خپلو کتابونو تړون د هغه کسانو په نوم وکړي - د چا لاس چې ورته اوږد وي. یا ئې ورته د هغوي له اړخه لیکل وکړي او هغوي ئې د ستاینلو سره دا سفارش هم وکړي چې د غه کتاب د شپاړسم، ایم فِل او پي ایچ ډي په کورس کښې د شاملولو قابل دي ولې چې دَ کتاب لیکونکي نو غرض دا په مخه کړې وي - ولې تبصره کونکي او سفارش کونکي نو په دې پوهېږي چې د د غه لیک معیار او مقام څهٔ دے. د نن لوستونکي د هغه نه څهٔ طمع لري او د سبا لوستونکي به د هغه د د غه راې په حقله څهٔ وائي. او دا هم حقیقت دے چې د نن دیو عالم فاضل او نوموړي پښتون لیکوال دا ذمه واري جوړیږي چې د نوو لیکوالو رهنمائي اوکړي. د غیر معیاري لیکونو د مخ نیوي بن بنا وکړي او لیکوال په دې پوهه کړي چې د خپل وخت وسائلو او صلاحیتونو بې ځایه استعمال و نهٔ کړي. ځکه چې هم د د غه مشراتو او تجربه کارو لیکونکیو د غه عمل او د غه رویه به د معیاري لیکونو او خواري کښو لیکوالو دا پېښه اکولو روایت جوړ وي د غه روایت به پښتو ادب د د نیا د پرمخ تللو ادبونو د سیالۍ جوګه کوي.

۱۰- په پښتو کښې یو رنګ تحقیق د هغه مقالو په صورت کښې دې کومې چې د چا شخصیتونو یا ادارو د ادبي خدماتو په حقله د معلوماتو دا نمونه ولو په حقله لیکلي شوي دي. یا پکښې د څهٔ ادبي موضوع یا صنف د موجودو معلوماتو جاج اخستے شوے وي.

اګر چې کنې شمېره پښتنو لیکونکیو په مختلفو موضوعاتو

کښې شمېر مقالې ليکلې دي خو د معياري مقالو شمېر ډېر کم دے - دغه کم شمېره مقالې ټولې د يادونې وړ دي - خود نمونې په ډول به د اجمل خټک "ژوند او فن" د زلمي هېوادمل په "پښتو نخوا کښې د علمي ادبي څېړنو د پرمختيا يون" د زرين انځور " د مهدي داستاني کليات" وړاندې کوم انځور د نوموړي پښتون افسانه نګار مهدي شاه مهدي خوارهٔ وارهٔ افسانوي ليکونه راغونډ کړي دي او بيا ئې د هغې په رڼا کښې د مهدي صاحب د ژوند په حواله په دغه ليکونو د کتاب د سرېزې په ډول يوه ښېرزه مقاله ليکلې ده - اجمل صاحب په خپله مقاله د ژوند او فن دَ ترون او تعلق په حقله د ستاينې وړ بحث کړے دے او هم دد غه مقالې په مناسبت سره ئې د خپل وخت د شاعرانو د کلامونو په نمونو راغونډولو سره د نوي وخت د پښتو شاعرۍ يو نمائنده کتاب چاپ کړے دے -

دغسې د غه د هېوادمل مقاله د ډېرې ستائنې جوګه ده - دغه مقاله د افغانستان نه خوريدونکې پښتو مجله جرګه کښې په دوې ټوکه کښې خوره شوې ده - په دغه مقاله کښې تقريباً د هغه ټولو وړو لويو او معياري / غير معياري ادبي آثارو احاطه شوې ده - کوم چې په تېرو څو کلونو کښې د سوات نه واخله تر کوهستې پورې د بيله بيلو ادارو او افرادو له اړخه په پښتو ژبه خوارهٔ شوي دي - دغه خوادي دومره په زړهٔ پورې ده چې کهٔ سهواً يا قصداً د څنې کتابونو ذکر نهٔ وې شوے نو سړے د ليکونکي په نيت شک نشي کولے - دد غه مقالې ژنداز د هېوادمل خپل سهي خو معيار ئې د زلمو ليکونکيو د پاره يوه ښه نمونه ده -

دپښتو هغه مقالې هم دستاینې یوګه دي کومې چې په تیرو څو کالو کښې دپېښور پوهنتون ځانګې طالب علمانو دایم فل او پي ایچ ډي دګریو حاصلولو په غرض لیکلې دي۔

تردې وخته دایم فل دپاره ډاکټر اختر، یارمحمد مغموم، عبدالوحید، بي بي مریم، شاه جهان، صاحب شاه صابر، جاوید، شاهدې او عزیزې مقالې وړاندې کړي دي۔ د اختر مقاله د بایزید روښان دَ ژوند په حقله ده. وحید او مغموم د آزادۍ په جدوجهد کښې دپښتنو شاعرانو دبرخې په حقله معلومات راغونډ کړي دي۔ مریم دپښتو نثر د تاریخ په حقله لیک کړے دے، شاه جهان په پښتو ادب کښې د مېرمنو برخه راغونډه کړې ده۔ صابر په جدیده پښتو شاعرۍ کښې دپښتنې ټولنیزو اثراتو جاج وړاندې کړے دے۔ جاوید د پښتو ادبي ټولنو په حقله معلومات راغونډ کړي دي۔ شاهدې د روښاني شاعرانو په آثارو کښې د صوفیانه افکارو اثرات لټولي دي او عزیزې د بایزید روښان او د هغه د کورنۍ د حالاتو په حقله د علي محمد روښاني کتاب حالنامه ئې د فارسۍ نه پښتو ته اړولې ده۔ دخپلې خپلې موضوع په حقله دغه هره مقاله په زړه پورې معلومات لري او پکار ده چې ولوې ځکه چې که یوخوا د ایم فل د ګرۍ مهمه ده نو بل خوا د دغه مقالې د لیکلو دپاره پوره پوره وخت ورکړے کېدے شي. زما نظره دغه ټولې مقالې دستاینې وړ دي او په پښتو ادب کښې د قدر وړ اضافه ده۔ نو چې کله خبره د ایم فل شي نو بیا سړے په دې وینا مجبور شي چې خالصه ژباړنه یا په یوه موضوع خالص معلومات راغونډول او یا دځینې زړو معلوماتو تکرارته په هیڅ جوړ هم یوه معیاري مقاله نشي وئیلے کېدے۔ ځکه چې تحقیق

یوه موضوع په نوی انداز وړاندې کول یا د زړې موضوع یو نوے اړخ دابرڅېره کول دي ددې نه کمه خبره په هیڅ جوړ او هیڅ حواله هم تحقیق نشي ګڼلے کیدے۔

ددغه ادارې نه تر اوسه پورې د ډاکټر اختر، د ډاکټر اقبال نسیم خټک، د ډاکټر راج ولي شاه خټک او د ډاکټر محمد اعظم اعظم په خپلو مقالو ډېټي اېچ ډي ډګرۍ اخستې دي په دوي کښې د اختر نه علاوه نور ټول د پښتو ادب نوموړي استاذان، ادیبان، شاعران او لیکونکي دي۔ اختر د بایزید روښان د مکتب فکر او نقطه نظر په حقله خپله مقاله لیکلې ده۔ نسیم صاحب "د خوشحال او جمالیات" تر عنوان لاندې تحقیق کړے دے۔ راج ولي صاحب په پښتو کښې د ادبي تحریکونو په حقله معلومات راغونډ کړي دي او اعظم صاحب "په پښتو کښې کردارنګاری" تر عنوان لاندې د کردارنګارۍ په پېچیده موضوع تحقیق کړے دے۔ د دغه څلور واړه مقالې په خپله خپله موضوع د معلوماتو په حواله د ستائینې وړ دي۔

د ځینې کسانو په خیال د نسیم صاحب مقاله د اردو د یو تحقیقي کتاب "اقبال اور جمالیات" او د راج ولي صاحب مقاله د انورسدید د تحقیق "اردو [redacted] تحریکیں" سره په عنواناتي لحاظ ډېر نزدیکت لري بلکې ددغه عنواناتو پښتو ژباړې دي۔ زما په خیال دا ښه رجحان نۀ دے خو بیا هم په یوه موضوع د خپل نقطۂ نظر وړاندې کولو دپاره د خپلې ژبې د چاپېل لیکونکي یا د بلې ژبې نه موزون عنوان اخستل ګناه هم نۀ ده خو هله چې د دغه عنوان لاندې لیکونکے خپله خبره وکړي۔

د انګرېزي ژبې نامتو نقاد ټي - ایس - ایلیټ د خپل بشپړ تنقیدي لیک What is Classic عنوان د فرانسیسي ادب نه اخستے دے او د خپل دغه لیک په ورومبي پېرا ګراف کښې ئې ددې اعتراف هم کړے دے چې ما دا عنوان د فرانسیسي ادب نه اخستے دے خو ما دې عنوان له خپله معنیٰ ورکړې ده - د دې د لاندې مې خپله خبره کړې ده - ماته د دغه استاذانو په ذکر شوي مقالو کښې د تحقیق د نظره ډېره کمي نهٔ ښکاري - کېدے شي چې کمی نهٔ لري او دا هم کېدے شي چې زما خپله شاګردي زما په سترګو لاس بندي - کېدے شي چې زما مطالعه او تجربه ماخطا کوي - خو یوه خبره نیمه زما ذهن بیا بیا سکونډي - او هغه دا چې په یوه مقاله دوه کښې یا خو د موضوع پېژندګلو دومره اوږده شوي وي - او یا ئې په دومره ډېرو حوالو د ثابتولو کوشش شوے دے چې ابهام او پېچیدګي ئې پېدا کړې ده او بله دا چې په دغه مقالو کښې د موضوعاتو په حقله هغه حوالې نورا نقل کړے شوي دي کومې چې د شاؤ نوا د لاسبرېو په کتابونو او مجلو کښې موندے شوي دي - نو د هغه یکونو د حوالو را نقل کولو ضرورت نهٔ ده شوې - کومې چې په افغانستان او بلوچستان کښې شوي دي - حالانکې د دغه نوموړي لیکوال د وخت او وسائلو د نظره دا سې ډېرې ګړي نهٔ دي چې ګڼې د غه لیکونو ته ئې لاس نهٔ رسېدو - خو د دغسې ډېرو ورو ورو نیمګړتیا ګانو باوجود د غه مقالو د پښتو نثر پنګه په علمي توګه درنه کړې ده -

په پښتو ادب کښې د تحقیق په څنګ څنګ کښې د تنقید قافله هم خوزېدلې ده - اګر چې په پښتو کښې د تنقید پنګه ډېره کمه ده خو د غیر ضروري تفصیلاتو او ابهام نه د بچ کېدو په خاطر ئې څهٔ داسې وېش کوو -

(۱) د عربو نه متاثره مشرقي ژبې د تنقید په میدان کښې د ارسطو د "رطوریقه" اثرات لري - "رطوریقه" د خطابت د هنر په حقله لیکلې شوې دے - د دغه کبله په مشرقي تنقیدکښې په صدو صدو د فن پارې د تحلیل او تجزیې په ځائے دهغې لب ولهجه د بحث لاندې نیوے شوې ده - د بیان په رنګ روغن، د جملو په جوړښت، د لفظونو په شان شوکت د قافیې په حرکت و سکونت، د ردیف په خوند رنګ، د تشبیهه په ترکیب، د کنایې، استعارې، مجاز مرسل او نورو شعري صنعتونو په استعمال بحثونه شوي دي - په دغه حقله په عربۍ، فارسۍ کښې ګڼ شمېره کتابونه لیکلې شوي دي په تاریخي توګه د پښتو روایتي تنقید په دغه رنګ کښې رنګ دے - که خوشحال خټک د شعر په حقله څه وئیلي دي - که اشرف خان هجري د چا شعر ستائیلے یا غندلے دے - که رحمٰن بابا د خپل شعر صفت کړے دے او که د نورو شمېر لږغونو شاعرانو په خپلو شعري آثارو کښې د حمید بابا د شعر صفتونه کړي دي نو هم د دغه رنګه ئې رنګ اخستے دے - د شلمې صدۍ په دویمه نیمایۍ کښې چې په دغه رنګ کښې کوم کتابونه ولیکلے شو په هغې کښې د سمندرخان سمندر "د ادب منارہ" د تسنیم الحق کاکاخیل روح ادب دستاښې وړ دي -

اګرچې د دغه کتابونو زیاتې برخې ژبارنې دي خو د یکو نکیو د استاذۍ او تجربې له کبله ژباړې نه ښکاري - د سمندر خان سمندر د ادب منارہ د خپل وخت نه ډېره ورستو پښتنه شوې ده - د مخصوصو علمي، سیاسي، معاشي، نفسیاتي او تکنیکي بدلونو له کبله د شلمې صدۍ پښتو هم دومره مهینو قافیو جوړولو ته سمه نه وه او د قافیې د سمون وخت ئې د فکر سمون له ودکړے -

روح ادب کهٔ د ننني پښتو ادب روح نهٔ دے نو ددې نه بغیر هم د ادب او خاص کر شاعرئ نوند پیکه ښکاري - روح ادب د علم معاني بیان او علم بدیع په حقله معلومات لري - د تشبیهه، استعارې او نورو شعري صنعتونو د قسمونو او د نکونو پېژندګلو لري - د دغه پېژندګلو څخولو د پاره ئې د پښتو د کلاسیکي شاعرئ حوالې راوړي دي - په اُردو کښې محمد حسین آزاد او عابد علي عابد د دغه قسمه تنقید استاذان دي - نو آزاد په خپل شعرالعجم کښې د شعر تهولنیز چاپیرچل هم څهٔ نه څهٔ په نظر کښې ساتلی دی او عابد علی په خپل کتاب کښې د شعر د خوبو د بیان د وضاحت په لړ کښې د عربي، فارسي د استاذانو شاعرانو د آثارو نه حوالې راوړي دي -

۲- په تېرو څلوېښتو پنځوسو کالو کښې (اُردو ژبې په یوه مخه داسې وده وموندهٔ چې د شاوخوا د نورو ژبو غوندې ئې په پښتو ژبه او ادب هم ډېر اثرات وغورزول - اګرچې زموږ ځینې عالمان، فاضلان په د اُردوغوندې کم عمره ژبې دومره زور آور اثراتو منلو ته تیار نشي نو دا حقیقت دے چې زموږ د تېرو څو کالو په ادب د دغه اثرات هیڅوک په هیڅ دول نهٔ شي پټولے - دغه اثرات لفظي هم دي او معنوي هم - دخوند د نظره هم دي او د رنګ د نظره هم - ددې حقیقت نه هم څوک سترګې نهٔ شي پټولے چې په دغه تېرو څو کالو کښې د اُردو ځینې لیکوالو د اُردو ژبې او ادب د چټکې پرمختیا د پاره د ستاشنې ورنحواري کړې ده او کهٔ چرته ئې د مغربي ژبو نه نقل کړے دے نو د عقل نه ئې هم کار اخستے دے - ولې زموږ ځینې لیکونکیو چې د دغه نقل نه نقل کړے دے نو د نحوادی نهٔ کولو له کبله

ترینه خبره ورانه شوې ده - د یو شمېر کسانو په دغسې لیکونو نحو لوستونکي په دې هم نه پوهېږي چې لیکونکی په څهٔ موضوع ویېل غواړي - او څهٔ ویېل غواړي - کوم قسمه نوي معلومات وړاندې کول غواړي - د ژبې کوم ضرورت او د ادب کومه نیمګړتیا پوره کول غواړي په پښتو کښې دد غسې مضمونونو او مقالو شمېر کم نهٔ دے - خو کهٔ یو کتاب دوه داسې شته چې په هغې کښې د اُردو ادب نه د پوره پورهٔ استفادې سره سره د لیکونکیو خپله خواري هم شامله ده نو هغه د سید رسول رسا "ادبي تنقید" او د سکر یوسفزي "ادب څهٔ دے ؟" کتابونه کېدے شي.

رسا صاحب د انګرېزي ادب مطالعه هم لرله خو د هغوی ذکر شوي وړوکي غونډې کتاب د لفظ او معنې دواړو د نظره د اُردو ادب په رنګ کښې رنګ دي.

اګرچې د رسا صاحب خواري په پښتو کښې د ادبي تنقید په لړ کښې د ومبې دستانئې وړ خواري ده - د غه خواري د اُردو د ړومبي نقاد الطاف حسین حالي د مقدمه شعر و شاعري د معیار نه سهي خو بیا هم سرے ویلے شي چې په دغه دوره کښې دومره خبره هم پوره ده - ولې څنګه چې ویلے شوي دي هغوئ د انګرېزي ادب مطالعه هم لرله او تر دغه وخته پهٔ انګرېزي ژبه کښې د انګرېزي د خپلو نامتو نقادانو د تنقیدي خوارو سره سره د نورو ژبو د نومړو نقادانو تنقیدي کارنامې هم انګرېزي ته اړولے شوې وې - په دغه آثارو کښې به د پرڅهٔ د رسا صاحب دَ نظره تېر شوي وي - او کهٔ هغوي لږه خواري نوره کړے وے نو خپلې مطالعې او معلوماتو په رڼا کښې يې پښتو ادب ته د تنقید د یو معیاري کتاب ورتحفلي شو - پهٔ اُردو کښې د الطاف حسین حالي نه واخله تر نن وخته پورې

احتشام حسین، ډاکټر سلیم اختر او پروفیسر کلیم پوري ټولو نامتو نقادانو هم د انګرېزي ادب د لوستې په رڼا کښې اردو ته د قدر وړ تنقیدي آثار ورکړي دي -

سحر صاحب اګرچې د اُردو ژبې استاد دے خو د انګرېزي ادب ژوره مطالعه هم لري - د هغوي ذکر شوے کتاب دَ انتساب او دیباچې سره دوه سوه او اووه مخونه لري - اګرچې په دغه کتاب کښې ځو ځایه د انګرېزي د نامتو نقادانو او عالمانو په حواله خبره شوې ده خو د کتاب معلومات او د معلوماتو د پاره غوره کړے شوے عنوانات د اُردو په رنګ کښې رنګ دي - د دیکونکي خوارې په زړه پورې ده خو په ځنې ځایونو کښې لکه د ډاکټر عبادت بریلوي "د تنقیدي زاویے". بې ځایه تکرارونه لري او ځنې ځایونو کښې لکه د ظهیر کاشمیری "تنقید کے مادی نظریات" غیر ضروري بحثونو کتاب بې رنګه کړے دے او چرته چرته د ځنې ضروري خبرو نیمګړې پرېښودو له کبله لوستونکي ته د نیمګړتیا احساس کېږي - د کتاب په دیارلسم، څوارلسم او اتلسم مخ د افلاطون، ارسطو او ایلیټ له خوا د شاعرۍ تعریفونه د ادب یوه برخه ده - د غسې په شلم او یو ویشتم مخونو د هرس او سکاټ جیمیز د رانقل کړے شوي وېنا ګانو حوالې نهٔ دي په نخښه کړے شوي - دغه حال د فرائډ، ژونګ او اېډلر د وېنا ګانو هم دے - د مارکسي او نفسیاتي تنقید ذکرونو بحثي نیمګړے نیمه خوا دے - حالانکې د سحر صاحب د کتاب لیکلو تر وخت پورې په انګرېزۍ او اُردو دواړو کښې د دغه دواړو تنقیدي مکتبونو له اړخه ګڼ شمېره کتابونه، مقالې او مضمونونه لیکلے شوي وو - د سحر صاحب هغه رائې هم د واقعیت نه لرې او د سیاسي انتهاپسندۍ په

رنګ کښې نوشته ښکاري - د کومې د مخه چې د ولي نه وا خله تر جګو مراد آباد پورې د اردو شاعرانو شاعري د تمام نه د عمل د طاقت ترو پرونکې کوشش کېدلې شوے دے.

که چرې د غه شاعري د شاعرۍ په توګه په غور او کتے شي نو ځائے په ځائے پکښې د عمل ترغیب موندے شي او که فرض کړه یو څوک لوستونکے د نورو شاعرانو نه انکار وکړي نو د اکبر آله آبادي، محمد حسین آزاد او الطاف حسین حالي شاعرۍ ته به څه وائي - نو د ځنې ېمګړتیاګانو او انتهاپسندو باوجود هم د سحر صاحب د غه اثر د ستائنې وړ دے.

۳ - زمونږ د تنقیدي ادب یوه برخه داسې ده چې په هغې د تنقید په معنیٰ، مفهوم، اهمیت ضرورت، اصولو او ضابطو لیکونه شوي دي - په د غسې لیکونو کښې نوے د مولانا عبد القادر هغه مشهور مضمون دے کوم چې " په "تنقید تنقید" تر عنوان لاندې لیکلے شوي او د هغوي د مضمونونو په مجموعه "د فکر یون" کښې خور شوې - د دې نه علاوه یو څو لیکونه هغه دي چې د افغانستان نه په مجله "زیري" کښې وخت په وخت خواره شوي - او د ګل افضل تهکور په تدوین او سریزه سره "د کره کتنه" په نوم د افغانستان د قومونو او قبائلو د وزارت له خوا په کتابي شکل خور شوي دي - په د غه لیکونو کښې د عبد الرحیم "ادبي تنقید" د معتمد "ادبي انتقاد" د غوث "نقد او نقد کونکي" د م - ع "کره کتنه"، د عبد القیوم نودوزي "کره کتنه"، د استاد بېنوا "د نقد څارنه دې وسي" د سرشار "ادبي چاڼ" د علي محمد "کره کتنه" د لنډوالي باوجود د ستائنې وړ جامعیت لري - اګر چې په د غه مجموعه کښې د پښتو ادب د څو نورو معتبرو استاذانو لیکونه

هم شته نو هغوي په خپلو لنډو و لنډو ليکونو کښې د تنقيد په حقله د
څه ليکلو په ځائے د مجلې د مدير هغه کوشش و نه ستائيلي دي. د
کومو په برکت چې هغه ليکوال د کره کتنې په حقله څه ليکلو ته لمسولي دي.
اګرچې د "ذيري" د دغه وخت د مدير زلمي هيواد مل د غه لمسه د ستائنې
ور ده خو که هغوي په ليکو نکيو د تنقيد مختلف موضوعات و پشلي وې
نو شايد چې د تنقيد په مختلفو اړخونو به د قدر ور ليکونه هم شوي وي
او د هغه ځنې تکرارونو مخ نيوے به هم شوے وي کومو چې د موضوع د
يو والي له کبله په برنو ذکو شوي ليکونو کښې يکرنګي پيدا کړې ده.

د دغه تنقيدي ليکونو په لړکښې د پو هنمل خالق رشيد هغه
يک هم د قدر د ورډے کوم چې د پښتو هنري ادبياتو د کره کتنې لنډه
تاريخچه په نوم په کتابي ډول د افغانستان د ليکوالو ټولنه له خوا خور
شوې - د ليکوالو د اتحاديې له اړخه د زدين انځور شعرونه او نقدونه
هم د دغه هومره اهميت جوګه دي. په دغه دوارو کتابونو کښې د تنقيد
د پيژندګلو سره سره د پښتو ادب ضرورتونه او مزاج هم په نظر
کښې ساتلے شوي دي - د نظرياتي تنقيد سره سره د عملي تنقيد ځنې نمونې
هم لري - د دې نه علاوه په "ژوندون"، "پښتو" (پښتو ټولنه)، "جرګه"
(افغانستان)، "اباسين" (پېښور)، "ولس" (کوئټه)، "قند" (مردان)، "پلوشه"
(کراچۍ)، "ليکوال" (پېښور)، "جرس" (کراچۍ)، "نومې مجلو او بانګ حرم
(پېښور)، "شهباز" (پېښور)، او "وحدت" (پېښور) نومې ورځپانو او
اووه ورځنې "هيواد" کښې هم د پښتو غزل، افسانې او داستانونو په حقله
تنقيدي ليکونو، مضمونونو او مقالو د پښتو تنقيدي ادب ته په

علمي او هنري ډول درناوے بخښلے دے۔

(۵) د پښتو ادب د تنقید په لنډه تنګه دنیا کښې لږه غونډې برخه داسې هم ده چې په هغې کښې د یو لیکوال د شاعرۍ یا نثري اثارو تجزیه او تحلیل شوے دے۔ دا لیکونه په ځانګړې ډول تورد مضمون، مقالې یا کتاب په صورت کښې په چاپ شوي ډول نشي موندے۔ البته د دوست محمد خان کامل په "رحمان بابا" او د محمد اعظم اعظم په پښتو افسانه کښې ئې ځا ئے په ځا ئے نمونې موندے شي۔

(۶) علم په خپل وجود د هیچا اجاره داري نهٔ مني۔ د دنیا په مخ هره علمي کارنامه د دُنیا د هر قام د هر وګړي وراثت دے۔ نو د قومونو اکثر وګړي د هغې نه هله استفاده کولے شي۔ چې کله د غه کارنامه د هغوي په خپله ژبه کښې وي۔ د دنیا هره ژبه او د هرې ژبې ویونکي د خپلو معلوماتو زیاتولو او خپلې علمي پنګې درنولو په خاطر دې ته متاژه دي۔ چې د خپلو علمي لیکونو سره سره د نورو ژبو علمي آثار خپلې ژبې ته رااړوي۔ د هغې ژبې او هغه قام نامتو وګړي د د غه متاژۍ ورکولو دپاره په یو مخ زیارونه کوي۔

پښتو او پښتنو ته د نورو علمي آثارو او بیا په تېره تېره د ادبي تنقید په حقله د شوي لیکونو ژباړې ډېر زیات ضرورت دے نو پښتنو پوهانو په دغه لور ډېره کمه پام لرنه کړې ده۔ په دغه ژباړنو کښې د قلندر مومند له اړخه د ارسطو د پو ئیټکس ژباړنه "نظمیات" په نوم۔ د ولیم هنري هډسن د تنقیدي شاهکار انټروډکشن ټو د سټډي آف لټریچر دیو باب تلخیص او ژباړنه "د تنقید" په نوم، د

نوازطائزله اړخه د الطاف حسین حالی د" مقدمه شعروشاعري " ژباړنه، دَ لطیف بهانه ابراهیم عطائي او یوڅو نورو زلمو لیکوالو له خوا د روسي، جرمني، فرانسیسي او انګریزي ژبو نه د وړو وړو تنقیدي مفهمونونو ژباړې زمونږ. هغه ټوله اثاثه ده کومه چې مونږ د پښتوڅوځلی له راوړې ده -

(۲) په پښتوخوا کښې داسې اداره نشته چې د هغې له اړخه دَ زلمو شاعرانو او لیکوالو د روزنې او پالنې بندوبست کیږي - که چا په خپل سمې څه زده کړهٔ نو وشوه کني سل هم نه شین دے - او نهٔ داسې څه اداره، دله یا ټولګے شته چې هغه په لیکوالوکښې د مطالعې د ذوق پیدا کولو سره سره په خلقوکښې دپښتو ادب د لوستې زیاتولو لارې چارې ولټوي - بیا نوکه کومې ادارې دغه ذمه واري ترسره کوي نو هغه هم دغه ادبي جرګې او ټولنې دي - سره ددې چې دغه ټولنې هم دَ وړو وړو خبرو ذاتي عنادونو او اناګانو له کبله په وړو وړو ډلوډلو کښې وېشلے شوي دي او وېشلے شي - چې څوک سرلري هغه څود د سردارۍ دعوی لري - بې سرو هم د سردارۍ پګړۍ په سرکړي دي کهٔ چا دوه ځلو، غزلې وئیلې نو دَ مقامي انتظامیې په مرسته ئې د دوُ ځلو او تنو دله جوړه کړې ده - کهٔ غونډې وشوې کیږي او کهٔ نهٔ کیږي، دَ صاحبانو ملکیت نو جوړې دي او ادبي ملکان د سرکاد په کاتوکښې د قبائلي ملکانو نه زیات معتبر وي - اکثرو لیکوالو دپښتو ادب وده د خپلې دغسې

معتبرې د سره قربان کړې ده - نو ددې تېرو لږو او لمزورو باوجود هم دغه تولنې او جرګې دې چې د پښتو ادب د نیا ټې ودانه آباده ساتلې ده - خلق د پښتو ادب سره اشنا کوي - خلقو ته دادب د لوستې ترغیب ورکوي - د نوي لیکوالو حوصله افزائي کوي - او په خپلو تنقیدي غونډو د تنقید عمل روزنه کوي - ددغه غونډو هغه رودادونه زمونږ د تنقیدي ادب لویه برخه ده - کوم چې په ورځپاڼو او مجلو کښې خواره شوي د غه تنقیدي بحثونه او د هغې روداد د خپل اوږده والي او سطحیت باوجود د تنقیدي عمل د ضرورت او اهمیت له کبله د ستائنې جوګه دي - د دوائي پېړې اکثر نامتو پښتانه لیکوال د افغانستان د پښتو ټولنې او پښتو خوا " د اولسي ادبي جرګې " د تنقیدي غونډو روزلي دي - د جرګې د تنقیدي غونډو ځنې رودادونه د ښاغلي عبدالکافي ادیب په خوارې د پېښور نه په کتابي شکل خواره شوي دي - چې د تاریخي اهمیت سره سره د نوي لیکوالو او ادبي جرګو د زده کړې د پاره هم ډېر څه لري - د غسې د پښتو ټولنې له اړخه هم یو شمار داسې کتابونه خواره شوي دي چې د پښتو ادب تنقیدي برخې ته ئې وده ورکړې ده -

(۸) پښتو کښې یوه نمونه یک داسې دے چې د مستند و لیکونکیو او ځنو تبصره نګارو له خوا د ژلمو شاعرانو ادیبانو په کتابونو د تبصرو په ډول لیکلے شوې وي - دغه لیکونه یا خود کتاب سره شامل وي یا په ورځپاڼو او مجلو کښې چاپ شوي وي - دغه تبصرې اکثر فرسوده او بې مغزې وي - مستندو لیکونکیو هم قسمه مال په یوه ساه ستائلې وي او د هغې دوائې په بوتل ئې یو رنګ او یو شان لیبل لګولے وي - هر کتاب

ئې د پښتو ادب په خزانه کښې معتبره اضافه ګڼلې وي. د ليکونکيو ملاحيتونه ئې ستاښلې وي ، لوستونکو ته ئې د ليکوال د ښکلې حال او روښانه مستقبل زېرې ورکړے وي . په دغسې سلو ليکونو کښې څوس نوې جملې او نيمګه نوې خبرې نشي موندې -

منم چې د پښتو ادب په کاڼناتو کښې دَ تحقيق او تنقيد دنيا د ګوتو د شمېر په يوڅو کتابونو، يوڅو ژبارنو، يوڅو مضمونونو او مقالو ولاړه ده. نو په دغه ليکونو کښې هم دوه ډلونه د ستاښنې جوګه دي - اکثر ليکونه يا خو دَ معلوماتو د لحاظه زاړهٔ وي - ياد اصطلاحاتو تعريفونه وي او يا د څو معتبرو عالمانو د هغه اقوالو چاپېره چورلي ګوم چې د اُردو ژبې ليکونکيو داسې مبنلي وي چې لکه د هغه معياري شعرونو غونډې پيکه پيکه لګي ، ګوم چې په لبسونو، تېرکونو او ډکښو ليکلي شوي وي -

پښتو کهٔ هر څو د شمېر يوڅو داسې استاذان لري چې د خپل علم مطالعې، پوهې او تجربې له برکته د تحقيق او تنقيد په ميدان کښې په زړهٔ پورې کارنامې ترسره کولے شي - خو د پښتو دا بد قسمتي په خپل ځائے ده چې هغو کسانو هم خپلې دغه ذمه وارئ په پوره دول نهٔ دي ترسره کړي - دَ نومونو، خطابونو او کتابونو د شمېر په حواله خو ګڼ کسان د تحقيق او تنقيد د مهارت او استاذئ شهرت لري - خو هغه د خوشحال بابا خبره -

چې دستار لري هزار دي
د دستار سړي په شمار دي

او کهٔ په دغه شمار کښې هم سرے ډيارئ دوستئ ، دلي ، پرې او شرنئ ، کشرئ خيال ونهٔ ساتي نو د دستار سړي به په ګوتو د شمېر لو شي - کهٔ دَ

وشلي، فرماشلي، راوي او روايت په حواله شوي تحقيقي ليکونه د ځني معلوماتو تکرار او دځني ضعيفو سندونو او فرسوده معلوماتو په حواله شوې خبرې يوې د دې ته کړے شي نو بيا خو به د دوه څلور کتابونو څلور سوه مقالو او مضمونونو نه پرته نور و ليکونو ته تحقيق وئيل ډيره ګرانه شي - د تنقيد په هړوکي پوره ې خو ددې نه هم کمه غوښته ده - مندم چې د تنقيد تقاضې ډيرې نادره دي - د نقاد نه غوښتنه کوې چې د خپلې ټولنې د سلون او پرمخ تګ د قوانينو او طاقتونو سره ځان بلد کړي- دخپلو ادبي روايا تونه دې ځان خبر کړي - د همعمرو مسئلو او ادبي تحريکاتو سره سره دې د هغه اجتماعي شعور ادراک ولري په کوم کښې چې د فنکار انفرادي شعور وده موندې وي - د فنپارې د هيئت او مواد و نوعيت او ارتقائي تاريخ دې په نظر کښې وساتي - خو که نور خلق دا کار کولے شي نو په پښتنو څه چل دے د انګريزی، فرانسيسی او نورو ډيرو پرمخ تللو ژبو د ليکونکيو غوندې نه سهي د اردو د جميل جالبي غوندې ې هم نه شو کولے - چې د مغربي تنقيدي مضمونونو او مقالو په ژباړنه او لنډيزو د" ارسطو سے ايليٹ تک " غوندې يو کتاب پښتو ته ورکړے وي - که دومره هم ګرانه ده نو د سجاد باقر د هغې خوارۍ هومره خو به ې کړې وي - کومه چې هغه په "مغرب کے تنقيدي اصول" کړې ده - په لنډه توګه به ې د پښتو ادب د هغه څه سره اشنا کړے وے د کوم څه سره چې عبادت بريلوي په خپل کتاب "غزل اور مطالعه غزل" او ډاکټر سليم اختر په "تنقيد اور لاشعوری محرکات" اردو ادب اشنا کړے دے- که چا د تنقيد خپله نظريه نه شوه جوړولے نو دومره خو کېدے

شو چې لکه د پروفیسر احتشام حسین د "تنقیدي نظریات" په ډول ئې د
مختلفو لیکوالو نکیو مقالې راغونډې کړې دي - په اردو کښې د غه ډول نوادر
نورو کسانو هم کړي دي - د اکټر گوپي چند نارنگ د افسانې او خاص کر اردو
افسانې په حقله' د اکټر ایم سلطانه بخش د "اردو میں اصول تحقیق" په نوم
د تحقیق د یو شمیر عالمانو، فاضلانو لیکونه راغونډ کړي دي - د پښتنو
لیکوالو دو ساټلو کمی او نیمگړتیا کانې په خپل ځائے نو پښتو قحط هم
نهٔ دے کهٔ د ځنې غیر ضروري او غیر معیاري لیکونو د چاپ د پاره وسیلې
پیدا کیدے شي نو معیاري او ضروري کتابونه به څنگه بې وسیلې پاتې
کیدهٔ - ما په دې وړاندې څو کوښښونو کښې د اردو ژبې د لیکوالو او د
هغوئې د لیکونو حوالې په دې ورکړې چې د غه زمونږ د اکثرو مشهورو
او نامتو لیکوالو ههعصر او اکثر هم عمر دي -
کومو پښتنو لیکوالو چې په یو وخت دې کار ته لاس اچولے په
هغوي کښې ځنې کسانو ابتدائې کامیابۍ موندي - خو ورستو د هغوي د
نا راستیو او بې پروایئ نه خبره پاتې شوې ده - خو دا کار کار دے او کول
غواړي - ددې نه بغیر نهٔ خو پښتانهٔ د پښتو ادب په ماهئیت او اهمیت
پوهیدے شي او نهٔ پښتو ادب د نوي نسل د ادبي ذوق خبریدے شي -
او بې ددې نه د ادبي ذوق او شوق قافله وړاندې بوتلل گرانه ده -
لکه چې د انگریزي ادب نامتو استاد سکاټ جیمز په خپل زړهٔ پورې کتاب
"میکنگ اولٹریچر" کښې یو ځائے په دې حقله خپله رائې داسې څرگندوي -

THE POEM OR PLAY MUSE FACE NEW TEST WITH
EVERY GENERATION-

ترجمه :- شعر په هر زمانه د نوي سره نوي نوي امتحانونو ته مخامخ کېږي" - (۱۵)

تنقید کولے شي چې د نوي نسل خوئ بوئ او د فنکار تخلیقي صلاحیتونه د يو بل سره اشنا کړي او تحقیق کولے شي چې زمونږ د تنقید دنیا د اوپره سرسري او هغه دغه خبرو په ځائے د معروفي حقیقتونو په بنیاد ودروي - تحقیق مونږ د خپلو ادبي روایاتو او تاریخي نیمګړتیاګانو هم خبرولے شي او د هغې پوره کولو لارې چارې هم راسمولے شي -

د معیار او مقدار دواړو د نظره په پښتو ادب کښې د تحقیق او تنقید د کمي کښې وجې کېدے شي خو بنیادي وجه ئې د علم کمے دے - علم چې په قرآن پاک کښې بیا بیا ستائیلے شوے دے - علم د ځنه حاصلولو د پاره چې محمد صلی الله علیه وآله وسلم مسلمانانو ته په کراتونو وئیلي دي - علم د ځنه زده کړې تلقین چې د افلاطون د وینا مطابق سقراط "کوښتو" ته په دې دول کوي -

" عقل زده کړه - په دې سوچ مه کوه چې فلسفیان بنه دي که بد - د هغوي په وینا غور وکړه او کوشش وکړه چې بنه او دبنتیائې وڅېړې "

د لته د عقل نه مطلب علم دے - علم د انسان هغه ورکه ده چې په کاواکه مونده شي - خو مونږ چې پښتانه هم یو او مسلمانان هم، خدائے رسول منو، په قرآن ایمان لرو او علم خپل وراثت ګڼو - خو د علم د زده کړې د پاره هیڅ خوارې هم ضروري نه ګڼو، تجزیې، مشاهدې او مسافرې خو پرېږده چې د کتب سرته پروت کتاب هم د بې

خواځې نه د ځان خلاصولو د پاره د تمرنکولا ترډ په ډول استعمالوو او که چرته څوک دوه څلور کتابونه ولولي نو بیا د څه نورې خوارۍ پرواځې د دغه مطالعې په برکت خپل لس اته کتابونه ډیکل غواړي او په دې سوچ نه کوي چې دغه یو یو کتاب په څومره وخت کښې په څومره خوارۍ لیکلے شوے دے -

زهٔ د چاپښتون لیکوال په ایمانداری او شرافت شک نهٔ کوم خو هر چا ته دا خواست کوم چې هغوي په دې غور وکړي چې مونږ خپل شته وسائل څنګه بکار راوستي دي - د نورو ضروري کارونو ترسره کولو د پاره د وسائلو پیدا کولو په غرض څهٔ منصوبې لرو - د هغه منصوبو عملي کولو د پاره موڅهٔ کړي دي - د دې هر څهٔ نه پس مو د ځانونو نه څو ځله تپوس کړے دے چې زمونږ د پښتو ژبې او ادب سره څو مره مینه ده ؟ د لیکوالو په حیثیت موخپلې ذمه وارۍ څومره پورهٔ کړې دي -

د انسان د کړو وړو او د هغه نه د نورو انسانانو د طمعو توقعاتو په حقله د انسان د ټولنیز ژوند دوه نامتو امریکنی استاذانو RAY MOND W. MACK او KIM BALLYOUNCY د خپل ډېر لوے تحقیقي زیار SOCIOLOGY AND SOCIAL LIFE په اتم مخ خپله شریکه رائې څهٔ داسې ښکاره کړې ده

ترجمه :- هر يو بنيادم په يو ټولګي کښې پېدا کېږي او خپل ټول ژوند د هغې اجتماعي تعلقاتو په بنياد جوړوي - هر کار چې هغه کوي دَ هغه د بل چا سره تړلي دي - چې هغه چا د دهٔ د پاره کوي يُې - يا يُې څوک د دهٔ نه طمع کوي "-

منم چې مونږ له د پرځنُ لکه د بنی اسرائيلو يخ کړي راځي - دَ کوکاکولا د فارمولې نه د سوزوکي پک اپ او ټريکټر د پُرزو پورې هيڅ هم زمونږ نه تحقيق نهٔ غواړي - د مودو مودو دغې ذهني تيارخورۍ به زمونږ تنقيدي او تحقيقي صلاحيّتونه ضرور زنګ کول - د غه زنګ زمونږ د ملک د نورو ژبو د ليکوالو په صلاحيّتو نو هم حملې کړي دي - نو ځکه بيا هم کله کله د ځانونو نه د غه زنګونه د محنت په نوکونو وګروي - ځکه چې بې د د غه خوارۍ نه عصري تقاضې نه پوره کېږي - انسان او انساني ژوند د زوړ والي او فرسودګۍ ښکار کېږي - دو خت په سمون د ځان سمولو په کوشش کښې د انسان ورې ورې خوارۍ هم د دېرې ستاينې وړ ګرځي - د لاطيني ژبې نوموړے شاعر ورجل کهٔ په صدو صدو د "هومر" غوندې شاعر نه لوې ګڼلے کېدهٔ او د انګريزۍ ژبې د سپنسر غوندې شاعر ټول عمر د خپل ملک د ورجل جوړېدو ارمان لرو نو ځکه چې ورجل د خپل وخت د بادشاهت د پاره ليکل کړي وو -

زمونږ اکثرو ليکونکيو د خپل عصر او نوي نسل تقاضې يا خو پېژندلې نهٔ دی او يا يُې ترې د وړو وړو مصلحتونو د خاطره ډډه کړېده - زهٔ په دې يقين لرم چې تر څو پښتنو ليکونکيو ( د ځوتنو نه په معذرت سره ) په دې ځان نهٔ وي پوهې کړې چې زمونږ د نيا د نواۍ د خکره سائنسي

صدا قتونو ته اړېدلې ده - د ځنځه معروضي حقيقتونو په برکت ودانه آباده ده - خوزي، بدلېږي - د غه خوځېدنه او بدلېدنه ځنځه اصول او قوانين لري، ځنځه اثرات او تاثرات لري - په ټولنيزو رشتو، تعلقاتو غوښتنو، اخلاقو، روایاتو او انساني طبیعت کښې فرق راولي - تر هغې دوي دا سې نيکونه نه کولے شي چې د دوي د پښتو په زور او تعلقاتو په برکت چرته په يو کتاب، چرته په بل کتاب کښې ځاے ومومي - د يو څو پېشه ورو مدح خوانو داد وا خلي - ولې نه ننني ذهن مطمئن کولے شي - نه د سبا نظر دوکه کولے شي او نه د پښتو ادب علمي پښکه ددنولے شي -

نه خوزما کار ديا عمر د نصيحتونو دے او نه دا ته څوک دا سې ښکاري چې زما غونډې کم علمه او نا تجربه کاره سړي نصيحت ته به محتاج وي - خو د موقعې په مناسبت خپلو ليکونکيو دوستو ته د فرانس د مشهور شاعر او نقاد "بولو" د هغه نصيحت يوه ټوټه وړاندې کوم - کوم چې هغه د خپل وخت شاعر ته کړے دے - خو غالبا چې په جزوي ډول د هر وخت د هر ليکونکي د پاره مناسب دے - په دغه ټوټه کښې هغه وائي چې " د ټول عمر شهرت د پاره ليکه او دولت د شاعرۍ مقصد مه ګرځوه - که په زړه کښې دې د مال او دولت مينه وي نو بيا ددې بې ګټې کاره لرې تښتـه - آيا انسان په شهرت ژوندے نشي پاتې کېدے او په لوی کار زندګی نه شي تېرولے (۱۷)

بې شکه چې ليکونکي انسان وي - انساني تقاضې او ضرورتونه لري خو که د خپل ليک سره خواري وکړي نو شهرت به هم ومومي او د ګټې امکان به يې هم وي - څنې پښتانه ليکونکي په خپل علمي توان تر هغه ځايه رسېدلي دي چې شهرت او دولت دواړه يې نصيب شوي وي - دا نه

ده چې کښې دې خاورې د غه دوه څلورتنه ژبې ولې دي او بیا شننه شوې ده - هر پښتون لیکوال د دغه کسانو همسرې کولے شي - بلکې په ځینې میدانونو کښې د هغوې نه مخکښې تلے شي - خو هله که د علمي زده کړې خوارې ته ځان ونیسي خپل لیکونه په علمي توګه د مرو لو او پښتو ادب د چټکې ودې د پاره د خپلې مطالعې، مشاهدې او تجربې سره سره د نورو پرمختللو ژبو نه استفاده هم کول پکار دي - خو دغه استفاده دې زمونږ د مثبتو روایاتو او تهذیب په چوکاټ د ننه او زمونږ د ادبي ضرورتونو مطابق وي زمونږ په تخلیقي صلاحیتونو، ثقافتي قدرونو، ادبي روایاتو او علمي صلاحیتونو دې زمونږ یقین ورک نه کړي - دا وئیل به مناسب نه وي چې پښتانه عالمان دې د خپلو خیالاتو او معلوماتو د اظهار د پاره یله یوه ژبه پکار نه راولي خو هغه دانش صاحب خبره -

؎ د چاچې خپل کلی د مینې یو نظر پسې مرې
محبتونه هغوي نه ورې د دېګر اړې په طرف

دا وخت پښتو ته د خپلو عالمانو ډېر ضرورت دے که څوک پښتون هر څومره لوې شي خو د پښتو نه لښي لوئېدے او نه څوک په خپله ژبه کښې په اظهار بدې سنګاري - لاطیني ژبه په صدو صدو د ټول یورپ د اسې علمي او ادبي ژبه وه چې " روجرشام " په انګرېزي کښې او " ډوبېلي " د فرانسیسي ژبې په حقله په فرانسیسي کتابونه ولیکل خو ډېرو معتبرو انګرېزانو او مخورېزو فرانسیسیانو دا د دوي کم علمي او پوهاوتیا وګڼله - خو نن دغه دواړه ژبې د علمي او هنري معلوماتو په لحاظ د ټولې دنیا د پاره د رڼا منارې ګڼلے شي او پښتو خو پښتو ده - دَ

هر علمي کوشش د هضمولو توان لري - د هيڅا نواري نهٔ هېروي - کهٔ پښتنو ليکونکيو په خپل همت، سنجيده کوششونو او لېوتو منډو دَ پښتو علمي پانګه د پرمخ تللو ژبو د سيالۍ جوګه کړه نو پښتو به يُ هيڅ کله هم د سيالانو د قطاره ويستلو ورنهٔ کړي -

تاريخ ګواه دے چې پښتو ژبې او پښتني خاورې په هر څنګه حالاتو کښې د خپل هر مېړن سره لکه د پښتني محبوبې دا لوظ کړے او پوره کړے - چې :

ﮮ په غرمبېدلي سپو راتېر شه

په نونرو چړو به زهٔ درتېره شمه

# پښتو ادب کښې

# تحقیق او تنقید

## ۲

---

د فلسفې، سیاست، تاریخ، جغرافیه او فیزیکل سائنس په حقله لیکلي کتابونه په خالص ادب کښې نه شي شمیرلې - خو په ادبي تحقیق کښې لاس لرلے شي.

د علمي نثر سره د لوستونکو د نا اشنائۍ او لیکونکو د مطالعې د کمۍ په سبب په پښتو کښې د فلسفې په تاریخ او فلسفیانه موضوعاتو د شوي لیکونو شمیر ډېر کم دي - په دغسې لیکونو کښې د ارباب سکندر "فلسفهٔ ذره نورے" (پېښور چاپ) د گل باچا اُلفت "منطق" (افغانستان چاپ) د حمزه شنواري "تسخیرِ کائنات" "انساني انا او پوهه" "ژوند ژور فکرونه" (پېښور چاپ) د شیرعلي باچا "فلسفه څهٔ ته وائي" (پېښور چاپ) د عابد جان "فلسفه د جنون او جانان" (مردان چاپ) د پروفیسر محمد نشار ملغلرې په مرمر (مردان چاپ) په دي لړ کښې د یادونې ور دي.

د منطق د چاپ نه چې شوې بیان د منلو ور کېدلي شي - په پخوانې یونان او ورستي یورپ کښې فلسفیانو د منطق په حقله ډېر څهٔ لیکلي دي - د منځنۍ ایشیا او عربو مسلمانانو د ځپل عروج په زمانه کښې د یوناني فلسفې

او منطق نه پوره پوره استفاده کړې ده -

ابونصر فارابي ، يعقوب الکندي او بوعلی سينا د ارسطو د منطق شرحې ليکلې دي - د ځېلو نظرياتو په سمون او ترتيب کښې يې د يوناني فلسفې او منطق نه استفاده کړې ده - د امام غزالي ، جلال الدين رومي ، عمرخيام ، سهروردي او نورو روحاني شخصيتونو په افکارو او اثارو د دغه اثراتو ډېره غلبه ده -

د الفت صاحب ياد شوې اثر هم د دغه مسلمانانو عالمانو د ليکونو د اثراتو په رڼا کښې د پخواني يونان د منطقي دودے په رنګ کښې رنګ دې -

حمزه بابا د شلمې پېړۍ پښتون پوهانـد دې نو د هغه ياد شوي اثار د علمي درونډوالي لرلو باوجود د نولسمې او شلمې پېړۍ (عيسوي) د سائنس او فلسفې د اثر او تاثر د دائرې نه بهر پاتې شوي دي -

د شيرعلي باچا ياد شوې يک د هغه کتاب ژباړنه ده کوم چې په اردو کښې "مارکسي فلسفه" په نوم ليکلې شوي دي - دغه يک د فلسفيانه نوم لرلو باوجود سياسي او معاشي موضوعات او غرضونه لري -

د عابد جان کتاب ځپـله موضوع نوې او په ذړه پورې يک دې - په دغه يک کښې د غني خان د شاعرانه فکر تجزيه او تحليل شوي دي -

د ژوند ، جانان ، خالق او تخليق په حقله د هغه د ځانګړو فلسفيانه تصوراتو د ابرسېړه کولو سره سره عابد جان د زوړ يونان او نوي يورپ د فلسفيانه تصوراتو او د غه پښتون شاعر د خيالاتو ترمنځه په اشتراک او اختلاف خبره کړې ده -

دغه يک نه يواځې د غني خان د شاعرۍ په حقله نوې او معياري دے بلکې په پښتو نثر کښې هم د نوي انداز او نوي معيار نمونه ده -

په تازه، نوؤ، خوږو او روانو جملو کښې د نوي فکر پېرل د دغه کتاب امتيازي شان دے. د ديکوال د ناتجربه کارۍ په سبب کله کله جملې په ګرامري لحاظ غلطۍ شي خو په زرو، سستو، بې خونده او بې رنګه جملو کښې د فرسوده خيالاتو بيانولو نه د نوي فکر څورونکې نوې، تازه خوږې او خوندورې جملې د لږې غلطۍ باوجود هم د ستائيلو وړ دي.

پروفيسر نثار په خپل کتاب کښې د مختلفو سرخطونو لاندې په مختلفو موضوعاتو د شاعرانو، فلسفيانو او پوهانو شعرونه او وېناګانې رانقل کړي دي د نورو په څنګ کښې ئې خپل خيالات هم په شعر او نثر کښې بيان کړي دي په پښتو کښې د منفرد انداز دغه خوږ او معلوماتي کتاب د ستائينې جوګه دے خو د وېنا کونکو د نومونو او حوالو د نشتوالي له کبله د مختلفو وېناګانو ترمنځه فرق کول هم ګران دي. د نورو عالمانو او ليکوال د خپلو خيالاتو کښې فرق کول هم ګران دي.

په پښتو کښې د فلسفې په موضوع او تاريخ تر ټولو زيات په زړه پورې ليک د ارباب سکندر ياد شوې اثر دې

په کال ۱۹۶۶ء کښې د دارالتصنيف پښور له خوا خور شوے دغه کتاب د فلسفې د تاريخ په موضوع يواځې د فلسفيانو نومونه، د زمانو تعين او د خيالاتو نمونې نه لري بلکې ليکوال ځائے په ځائے د دغه معلوماتو تحليل او تجزيه هم کوي.

په ډېرو ځايونو کښې د دغه د اخذ کړو نيتجو سره د اختلاف باوجود د دغه طريقه د ستائيلو ده.

امکان دے چې د پښتو ادب لوستونکي ماسره اتفاق او لري چې اول خو

په پښتو کښې د فلسفې په موضوع ليکونه ډېر کم دي او چې څه دي د هغې لويه برخه د اردو او فارسي نه اخذ، ماخوذ او ژباړنې وې کوم چې دغه ژبو د انګريزي او نورو ژبو اخستي دي.

خو! تر کال ۱۹۶۶ئه پورې په اردو، فارسي او نورو ګاونډيو مشرقي ژبو کښې په دغه موضوع هيڅ يو داسې کتاب نشته چې په تاريخي ترتيب او معلوماتي توازن کښې د ارباب صاحب د کتاب برابري اوکړي.

په دغه کتاب کښې د پخواني يونان نه واخله د اوسني يورپ د فلسفيانه رجحاناتو او فکري رويو سره د هند، چين، ايران، عربو او منځني ايشيا د پخوانو پوهانو په خيالاتو هم خبره شوې ده.

ليکوال د کتاب په ورومبو څو کښې د فلسفې په پېژندګلو، په قومي ژوند کښې د فلسفې په اهميت او په پښتو کښې د علمي ليکونو په کمي خبره کړېده.

په ورپسې څو کښې ئې د يونان د ورومبي لوئ پوهان تهيلس خيالات راوړي دي بيائې د فيثاغورث او زينو فن په هغه فکر خبره کړې ده کوم چې د بت پرستۍ خلاف د وحدانيت په حقله دې. په دوې پسې ئې د حکيم هرکليدس او انکساغورث حياتي نظريه بيان کړې ده د ايمپيدوکليس خبرې ئې رانقل کړي دي.

د ليوسيپوس او د هغه شاګرد وليما کريطوس اهمې نظريه ئې ساده کړې ده. د سو فسطائي پوهانو فکر او علمي خدمات ئې بيان کړي دي - د رواقيانو او اپيقوريانو د نظرياتو ذکر ئې کړې دے.

په عمومي ډول د فلسفې په تاريخ او تذکره کښې د يونان د لويو فلسفيانو ذکر کيږي خو د ارباب صاحب د ياده کړې شوو کسانو د پېژندګلو نه بغير د دغه

لویو عالمانو په خیالاتو پوهیده ګران دي - ددغه پوهانو فکری رویو او علمي

خدماتو د لویو عالمانو پیدا کیدو دپاره حالات سازګار کړي دي . د ورومبي

نامتو نابغه سقراط د نظریاتو بیانولو په لړ کښې ییکوال دهغه جمهوریت ضد

رویه غندلې ده . وسقراط نه وروستو یې دیونان نور لویې عالمان او

فلسفیان یاد کړي دهغويّ په خیالاتو او نظریاتو یې خبره کړې ده . دیونان

نه پس ییکوال په خپل یاد شوي اثر کښې دپخواني هند جیني فلسفه، بدهٔ مذهب

ویشکا فلسفه ، سانکهیه فلسفه ، یوګ فلسفه دویدانیت فلسفه ، دشنکرا

چاریه فلسفه او د را مانوج د فلسفې بنیادي خدوخال ښکاره کړی دي .

"دچین فلسفه" تر سرخط لاندې یې دچین د فکری مکتبونو په لنډه

ذکر کښې د زور ستر فلسفه رڅوک چې د زرتشت په نامه یادیږي او د قطبي

افغانستان د بلخ نو یې علاقې شاو خوا پیدا شوې) د مسلمانانو فلسفیانو او

مفکرینو لکه یعقوب الکندي ، ابن رشد ابونصر فارابي ، بوعلی سینا ، امام غزالي

او نورو خیالات یې رانقل کړي دي - دمادیت دسرخط لاندې یې د اوسني یورپ

د ورومبي دخت د سائنسي پرمختګ او فلسفیانه خیالاتو په حقله خبره کړې ده.

دارتقا په نظریه یې خبره کړې ده او په وروستو وختونو کښې یې دشوپنهار

نطشے او نورو په حقله معلومات راوړي دي - د نولسمې پیړی په ذکر کښې

یې د سائنسي او خاصکر فزکی پرمخ تګ یادولو په څنګ کښې د فښتے،

سلنګ او هیګل یادونه کړي دي - ارباب صاحب خدائے خبر چې دکومو معلوماتو

په رڼا کښې د زرتشت فلسفه چیني یاده کړې ده - ځکه چې نهٔ خو دغه

عالم چیني وو او نهٔ یې اثرات په لویه پیمانه چین ته رسیدلي دي. البته

دمینځنۍ اېشیا سره د تعلق لرلو په وجه دچین په سنکیانګ او خاصکر

کاشغر کښې چرته چرته د زردښت د اثراتو اثار موندې شي.

په مسلمانانو فلسفیانو کښې سهروردي او مولانا جلال الدین رومي یادوي چې روحاني شخصیتونه دي خو د عمر خیام ذکر نهٔ کوي ځوک چې د بشپړ تخلیقي شخصیت سره سره سائنسدان او فلسفي هم دے. کېدے شي چې دغه سهواً شوي وي ځکه چې نهٔ خو عمر خیام د نظر انداز کولو دې او نهٔ ورسره د ارباب صاحب د ځهٔ اختلاف امکان ښکاري. البته د یورپ د اکثرو معتبرو فلسفیانو او سائنسدانانو د ذکر باوجود ئې هم د کارل مارکس ذکر نهٔ دې کړي حالانکه د نولسمې صدۍ تر سرخط لاندې ئې د دغه پېړۍ د طبعي او کیمیائي ترقي په څنګ کښې دفښتې، سلنګ، هیګل او نورو فلسفیانو ذکر کړي دے. حالانکې ارباب صاحب د دغه نوم او فلسفې سره ناآشنا نهٔ دے.

په خپل کتاب د "اقتصادیاتو خلاصه" کښې د هغهٔ په قدر زاید خبره کړے ده - د یادو شوؤ سهواً یا قصداً راغلو کمو نه علاوه په دغه کتاب کښې ده یاد شوي فلسفې او پوهان ذکر او فکر نیمګړې دے شاید چې د ډېر اوږد تاریخ رانغاړلو او ډېرو فکرونو رایوځائے کولو لهٔ کبله دغه نیمګړتیا راغلي وي -

خو! د دغه کمو او نیمګړتیاګانو باوجود هم د خپلې موضوع او معلوماتو په حواله دغه کتاب په پښتو کښې د ستائنې وړ لیک دے.

د اقتصادیاتو په موضوع په پښتو کښې د کتابونو شمیر ډېر کم دے. اګرچې په افغانستان کښې په دغه حقله یو شمیر لیکونه شوي دي -

خو! هغه اکثر د مختلفو جماتونو د طالبعلمانو د زده کړې په غرض لیکلي شوي دي - په دغسې کتابونو کښې د موادو د تحقیق په ځائے د ترتیب

خیال ساتلي شوي وي - زما د معلوماتو ترمخه په پښتو کښې په دغه موضوع د یادوني ور اثار څه داسې دي -

د محمد نادر ایوبي "اقتصادي نظریات" د دري ټوکه - افغانستان چاپ )

د ارباب سکندر خان خلیل "د اقتصادیاتو خلاصه (۱۹۸۰ ع پښتو چاپ)

د جلات خان حکمتي په زیار او سریزه "د پښتنو ټولنیز اقتصادي جوړښت د ثور تر انقلابه" افغانستان چاپ )

د محمد ابراهیم عطائي " خیل او ویش" د افغانستان چاپ )

اگر چې په نظریاتي لحاظ د محمد نادر ایوبي یاد شوی اثر هم ډېر مهم وي خو د دغه نظره د ارباب سکندر خان ټیک د ډېرې یادوني ور دے - ضروري اختصار جامعیت ، د ژبې روانې او د موادو په زړه پورې ترتیب هغه صفتونه دي چې دغه کتاب یې د ستائنې جوګه کړې دے - بنیادي خبره یې په سرمایه داره سوشلزم ، قدر او زاید قدر کړې ده خو د موضوعاتو د وضاحت او تاریخي پس منظر ښکاره کولو دپاره یې په مختلفو اقتصادي نظامونو او معیشتونو خبره کړې ده -

د پخواني هند او یونان معیشتونه یې یاد کړي دي - په تاریخي ترتیب یې د یو شمېر شخصیاتو په اقتصادي نظریاتو خبره کړې ده - د قدر د نظرئے تعریف او تاریخ یې رابرسېره کړې دے - د دغه مهمې موضوع د سرچینې یادولو سره سره یې د دې کمې په نخښه کړې دي -

د ادم سمتھ او ریکارډو د اقتصادي نظریاتو کمې اړخونه یې رابرسېره کړي دي - د کارل مارکس په "قدر زاید" د خبرې کولو نه وړاندې یې د هیګل جدلیات څېړلي دي او په اخره کښې یې د نوي اقتصادي نظام

خبره کړې ده . دغه نوي نظام د نوي ساينسي معلوماتو او تکنيکي بدلونونو اغېزه څېله کړې ده . په دغه کتاب کښې د اقتصادياتو د پوهانو د رانقل کړې شوې نظرياتو د اندازِ بيان سره اختلاف کېدې شي خو په دې کښې شک نهٔ شي کېدې چې ليکوال په ډېره خوبۍ او روانه ژبه کښې ډېر گران موضوعات په ډېره اسانه طريقه او جامع ډول بيان کړي دي .

د پښتنو د ټولنيز ژوند د اقتصادي حالت په حواله د جلالت خان ياد شوې اثر د يادونې جوگه کتاب دے .

ديوې ټولنې د اقتصادي جوړښت په حقله دغهٔ ليکلو په وخت د هغې ټولنې د پېداوارې قوتونو ، پېداوارې آلاتو ، پېداوارې رشتو ، پېداوار ماركيټونو او خلقو کښې د څيزونو د اخستو توان په نظر کښې نيوې شي .

خو ! په دغه کتاب کښې زيات ځائے د پښتنو دودونو ، دستورونو عبادتونو او دغه رنگ نورو خبرو له ورکړې شوې دې .

د اقتصاد په حقله سرسري او عمومي خبرې شوې دي - د ايشيائي ژوند او حالت په حقله د کارل مارکس د ليکونو حوالې راوړې شوې دي -

خو ! په دې خبره نهٔ ده شوې چې دغه ليکونه د ننني ايشيائي ژوند سره څومره سمون خوري او نهٔ دا په تخينه کړې شوې دي چې د هغه وخت د نورو ايشيائي قومونو او وګړو او پښتنو ترمنځه کوم کوم اقتصادي فرقونه وو او يا دا چې د هغه وخت او نن ترمنځه د پښتنو اقتصاد څومره سفر کړې دے . د دغه سفر شکل او ماهيت څهٔ دے -

د اقتصاد او سياست ترمنځه تړون په تخينه کول بشهٔ خبره ده .

خو ! د اقتصاد په حقله شوې ليک اول د اقتصاد د اصولو ، ضابطو

او قوانینو پابند پکار دے او بیا یې په بل قرون او تعلق خبره پکار ده - دغسې د مارکس په نوم اخستو یا د هغه ډیکونو په حوالو رانقل کولو هیڅ یوک مارکسي کیدې نهٔ شي - د مارکسی نقطه نظره پیداواري آلاتو ، تعلقاتو او قوتونو ته په جدلیاتي نظر کتے شي - خو په دغه کتاب کښې د دغه نظر رښانه ښکاري - د پښتنو قبیلو او مختلفو علاقو د اقتصادي جوړښت او ژوند ژواک ترمنځه ډیر فرقونه دي خو لیکونکي په دغه هرڅهٔ ډیر زغلند تیر شوے دے. په لورو ژورو او غرونو سمونو کښې هیڅ فرق نهٔ دے کړے -

نو ! بیا هم د تحقیق هغه طالبعلمان د دغه کتاب نه ډیرڅهٔ ترلاسه کولے شي ځکه چې په پښتو ادب کښې د پښتنو د دود دستور ، سیاست او اقتصاد اغېزه لټوي -

ابراهیم عطایئ په خپل یاد شوي لیک کښې بنیادي خبره په شیخ مِلّی دفتر کښې کړې ده - هغه عوامل یې څیړلي دي چې کومو د هغه دېش د منځه وړے دے - د شیخ مِلّی دفتر په لیکلی صورت کښې تر اوسه نهٔ دے ترلاسه شوے. خو په عملی ژوند کښې تر مودو مودو ځینو پښتنو قبیلو خپل کړے وو - او په ځینو ځایونو کښی تر اوسه اثرات لري -

د اقتصاد سره سره یو شمیر کسانو په سیاسي موضوعاتو هم په پښتو کښې کتابونه لیکلي دي چې په هغې کښې د محمّد نادر ایوبي سیاسي نظریات ( ددوه ټوکه ) د حفیظ الله امین " اِنقلابی لار " " د کارګرے طبقے ګوند " د ببرک کارمل " د ځوانانو سیاسي زده کړه " اود افضل بنګش ژباړنه " ریاست "

د نمونې په دول یادولے شي - خو په دغه کتابونو کښې د سیاست په حقله د علمي بحث یا د پښتنو د سیاسي تاریخ په ځائے د خپلې دلې سیاسی

نقطه نظر وړاندې کړے شوے دے -

حفيظ امين او ببرک کارمل پخپلو کتابونو کښې دخپلې تجربې په ځائے نخپله مشرۍ په نظر کښې نيولې ده - د مختلفو سرخطونو لاندې شوې يکونه اکثر د نورو ژبو د مارکسي دانشورو د يکونو پښتو ژباړنه ده -

نو! په ادبي اصنافو کښې دسياسي ژوند او بدلونونو اثر او تاثر لټونکي د دغه کتابونو استفاده کولے شي .

دپښتنو دخاورے اصل نسل او سياسي غورزو پرزو په حقله ددې يک په وړمبۍ برخه کښې د يادو شوو اثارو نه علاوه دعبدالحي حبيبي د افغانستان لنډ تاريخ د پښتو ژباړنه . افغانستان چاپ؛ د احمد علي کهزاد او محمد عثمان صدقي تاليف د افغانستان پخواني تاريخ ر د محمد يونس مژار، عتيق الله معروف ، غلام جيلاني جلالي او قيام الدين خادم پښتو ژباړنه افغانستان چاپ) دصديق الله رښتين تاليف نوې څېړنه (پېښور چاپ) د حسن بخش کوثر "طوفان" د کانکو فسکي او پولنکايا "دپاکستان تاريخ" (دجمعه خان صوفي ژباړنه - افغانستان چاپ) د محمد ابراهيم عطائي . "دپښتنو قبيلو اصطلاحي قاموس" (افغانستان چاپ) د ولي خان بيک "دښتيا دښتيا وي" (افغانستان چاپ) د احمد "خدائي خدمتګار تحريک (پېښور چاپ) د اکبرشاه "د ازادۍ تلاش" د عبدالاکبرخان اکبر "دروسي ترکستان او افغانستان سفرنامه" پېښور چاپ) د دوست شنواري "پښتانه کوچيان" افغانستان چاپ) د ستائنے وړ يکونه دي-

د افغانستان اکثرو پوهانو او دپښتونخوا دځينو عالمانو داخيال دے چې پښتانه په نسلي لحاظ اريا دي . دوئ د زرګونو کلونو راسې په دې خاوره

مېشته پاتې شوي او د دوئ خاوره د لويو تهذيبونو ټاټوبي پاتې شوې

ده - عبدالحي حبيبي د دغه فکري دلې سرخېل دئ. دغه په خپل تاليف " د پښتو

ادبياتو تاريخ " کښي هم دغه رائې ښکاره کړې ده او په فارسي ژبه ليکلے ياد

شوے تاريخ ئې هم د دغه محوره چاپېر چورلي - د دغه دلي ځيني عالمان خو

د دنيا نور تهذيبونه هم د پښتنو د تهذيب په رنګ کښي رنګ يادوي او د دنيا

نورې اکثرې ستر کورې پرګنې هم د دې خاورې کوچېدلي بلي په دوئ کښې

رښتين تر ټولو وړاندې وړاندې ده - دهغه د ياد شوي تاليف ليکونه

" د تمدن زانګو " " ايلاپي " " ديونان تمدن " دهغه دغه دعوې دي -

اګرچې د هغه دعوې پاخه دليلونه نه لري خو ځينو نورو پوهانو هم

دغسې دعوې لرلي دي -

لکه حسين بخش کوثر په خپل ياد شوي تاليف کښې د نورو لويو لويو

دعوو سره دا دعوئ هم لرلے ده چې سومريان د اېشيا ځمکه کوچېدلي دي -

او د دوئ ژبه پښتو لغات لري بلکې سومېري د پښتو لغاتو " سا " او " مېن "

جوړه ده - سا د روح او مېن د بلوونکي په معنیٰ نن هم په پښتو کښي مستعمل

دي - خو په دغه حقله پښتې تاريخ د کهزاد ياد شوې کتاب دے - د دغه

کتاب د پنځم فصل څه برخه دعثمان صدقي تاليف کړي شوې ده - په دغه

کتاب کښي د دې خاورې د زړو اوسېدونکو د تاريخ ، جغرافيه معاش او ثقافت

په حقله د ستائنې وړ معلومات دي -

د دغه معلوماتو ترمخه د " اريا " معنیٰ عبادت کونکي ، عقيده لرونکي

او قرباني ورکونکي دي - خو په اصطلاحي ډول دغه کلمې د نجيب ، شريف

بادار ، مشر ، مالک او واکمن د پاره مستعمل راغلي ده [1] -

"اوستا" دغه باختري اریاؤ کتاب دے چا چې د هند او پارس خواته مهاجرت نهٔ دے کړے او پهٔ خپل وطن کښې پاتې شوي.

د آریانه حدود، وېدې سرودونه، اوستا او ورومې اریائې تهتوبے یې د بحث لاندې نیولې دي.

پهٔ معلوماتي لحاظ د دغه کتاب ټول معلومات د اهمیت وړ دي. خو! د ادبي نظرې د "سوما" پهٔ حقله بحث ډېر مهم دے. پهٔ پښتو ادب کښې یو شمېر داسې اثار او اشارے موندې شي چې پوهان یې د سوما سره تړي.

پهٔ دې لړ کښې د دغه پښتو ټپې تعبیر څهٔ داسې کېږي.

ه

سپوږمۍ کړنګ وهه راخېژه
یار مې د ګلو لو کوي کوتې ریبینه

د څېنو پوهانو پهٔ خیال دغه "لو" د سومه د بوټي دے چې د سپوږمۍ پهٔ رڼا کښې بهٔ کېده او دغه ټپه د هغه وخت ده چې کله بهٔ پښتنو د دغه بوټي نه مشروب جوړوو د غسې د پښتو ادب ډېر لرغونې یادېږي.

د دې نه علاوه پهٔ نورو موقعو هم د فولکلوري ادب څېنې اشارې د سومه پهٔ لور کېتلې دي.

د وېدونو او اوېستا د معلوماتو پهٔ رڼا کښې کهزاد پخپل کتاب کښې لیکي چې

" سومه یو مشروب وو چې د غرنې ګیاه لهٔ شیرې او شاتو جوړېدو بدن ته بهٔ یې حرارت ورکوو او اکثر بهٔ د الله رانو مې رب پهٔ نوم ورکولې شوه "

پهٔ وروستو وختونو کښې دغه مشروب د وجود او روح د قوي کولو

سره سره د شړوتو او بلاګانو د مځ ینوي دپاره هم په کار راوستي شو.
دغه مشروب اصل "ګیاه" هم د "سومه" په نوم یادیده. اریایي ښځو
او جینکو به ددې ګیاه سپینه یا زیړبخنه شیره د سپوږمۍ په ر ڼا
او وړانګو کښې د غره په لمنو کښې ټولوله.

داوبو، شاتو او شودو سره په ګډون به ئې ورځني یو مفرح
او خوشحالي ورکوونکي او صحت خوښونکي مشروب جوړ وو. د مذهبي رسمونو
د اجراء کولو په وخت کښې به ئې د ارباب وانواعو په نامه نذر کوو.
زیاتره به د شریفې طبقې سره دغه مشروب څښه.

په اریائي خدایانو کښې یو "رب" هم د سومه په نوم یادیږي. دغه
رب په اریائي ژوندون او آیین کښې مهم رول لوبولے دے. دغسې د
وخت سره سره دغه مشروب "رب" شوے دے. په اوستائي وخت
سومه ته هوما ویلي شي.

په اوستا کښې یو کامل پښت "دهوم پښت" په نوم دې ته سپارلے
شوے دے د ریګوید په سرودونو کښې نهم جز د سومه د مناقبو او
ستائښې دپاره وقف دے. ددغه کتابونو د یوې قیصې مطابق دغه
ګیاه سینا نومې مارغه د آسمان نه راوړې وه او ددغه علاقې په لوړو
غرونو کښې غوږزولې ده. دغلته به شنه کیدله. په اوستا کښې ددغه
ګیاه د شنه کیدو ځایونه مفصل ښودلي شوي دي. سر اورل او ډار مستېتر
پخپلو مقالو کښې دغه لوړ غرونه د هندوکش غرونه، سپین غر، د پروان
او تیراه غرونه یاد کړي دي.
دغسې په دغه کتاب کښې ددغه ګیاه او مشروب په حقله اوږده

بحثونه شوي دي او کهٔ څوک دکومې پښتو ټپې، سندرې یا ادبي اثر کښې

شوې اشاره پهٔ دغه لورګښي - نو دغه معلومات د پهٔ نظر کښې اولري -

د پښتنو قبیلو پهٔ حقله د تحقیق پهٔ لړ کښې د عطائی یاد شوي اثر

هم دیادوني وړدې خو په دغه حقله د دوست شنواري "پښتانهٔ کوچیان" زیات

مهم اثر دې -

پهٔ دغه وړوکي کتاب کښې د پښتنو کوچیانو د ژوند ژواک د مختلفو اړخونو

پهٔ حقله د قدر وړ معلومات راغونډ کړې شوي دي - د دغه معلوماتو ترمخه

د کوچیانو دوه لوئ څانګې "دراني کوچیان" او "غلزی کوچیان" دي.

د دوئي د شمېر، سیمو، ټګلا دو، دودونو، دستورونو، معشیت او معاشرتي

ژوند پهٔ حقله ئې بحثونه کړې دي - د دوئي پهٔ څنګ کښې ئې د کوجرو

او بلوچو کوچیانو یادونه هم کړې دي -

د کتاب پهٔ وړومبو څونو کښې ئې د کوچیتوب پهٔ اصطلاح او ډولونو

خبره کړې ده - د پښتنو کوچیانو د مختلفو ډلو حالت او چلوې ئې بیان کړې

دي - د افغانستان پهٔ اقتصادي ژوند ئې د دوئي اثرات رابرسیره کړې دي.

د دوئ د موسمي بازارونو پهٔ رنګونو او ډولونو ئې خبره کړے ده - د دوي

د جغرافیائي شرائطو سره سره ئې د دغه اړیکو ذکر کړې دي کومې چې د دوئي

او نورو کلیوالو ترمنځه دي - د دوئي د دغم بنادئ پهٔ دستورونو، دوغ ژغوړ

او نورهماتو ئې معلومات راغونډ کړې دي -

د پښتو اولسي ادب پهٔ څورونه کښې ئې د دوئي برخه یاده کړې ده - د

ادب د نظره دغه د کتاب د ټولو نه مهمه موضوع ده خو د دغه کتاب تر ټولو

کمزورې نیک هم دغه دے - بناغلي محقق نهٔ خو د هغه سندرو نمونې

رانقل کړي دي کوم چې ددې دیو ځائ نه بل ته رسولي دي بلکې د دوئ ځانګړې سندرې ئې هم نظر انداز کړي دي او هغه سندرې ئې هم نه دې یادې کړي کوم چې د دوئ په ژوند پورې غیر کوچیانو جوړې کړې دې. بیکوال داخبره هم هېره کړې ده چې داولسي ادب نه علاوه دپښتو په نورو اصنافو لکه ناول، افسانه او ډرامه هم د دوئ ژوند ژور اثرات غورزولي حتیٰ چې پښتو ژبه ئې هم ډېره متاثره کړې ده. ډېر تکي محاورې اړونه، دورې او قصې دوي دیو ځائ نه بل ځائ ته اوړي دي.

دپښتو په علاقه دپېښو شوُو واقعاتو او پاکستان جوړېدو په حقله کنګوفسکي په خپل یاد شوي اثر کښې دکانګرس پارټۍ نقطه نظر خپل کړې دې کۀ هغه دتحریک خلافت په حقله وي اوکۀ دځۀ بلې واقعې په حقله حتیٰ چې کوم ځائ مارکسي نقطه نظر خپلوي نو هلته هم تېروځي.

دهندوستان دمسلمانانو د سوداګرو او کاروباري خلقو ډله ورسته د

مسلمانانو لویه بورژوازي بنکاري.

په دغه موضوع ولی خان په خپل اثر (انګریزي ژبه) کښې دواقعاتو دځرنګوالي او په هغې دمختلفو کسانو د رایو او دویو په حقله دستاویزي ثبوتونه راوړي دي دهغهٔ دسیاسي مقصدونو او نقطه نظر سره هرڅوک داتفاق او اختلاف کولو حق لري خو دهغهٔ رانقل کړي دستاویزي ثبوتونه دواقعاتو دڅرنګوالي په حقله معلومات وراندې کوي - دیونیورسټي بک ایجنسي پېښور لهٔ اړخه خور شوي داحمد یاد شوي اثر هم په ځینو واقعاتو ډېره بنهٔ رڼا اچوي. احمد نهٔ محقق دې، نهٔ مورخ او نهٔ سیاسي مبصر خو په دغه واقعاتو کښې دعملي ګډون په حواله دتحقیق کوونکو دپاره باوري سند کېدې

شي -

د هندوستان او پاکستان د جوړېدو نه وړاندې چې د پښتونو په علاقه کښې کوم واقعات شوي دي د هغې په حقله په پښتو او نورو ژبو کښې لیکونه شوي دي خو په دغه لیکونو کښې تر ټولو زیات اهمیت د بدرسنو د اکبر شاه یاد شوې کتاب لري - دغه سیاسي سفرنامه ده - د سفرنامې لیکوال په کال ۱۹۱۹ء کښې د افغانستان د استقلال په جنګ کښې د برخې اخستو په غرض د کالج د څو نورو ملګرو سره افغانستان ته تلے وو - د هغه ځایه بلخ، بخارا، سمرقند، تاشقند، ماسکو، باکو، قفقاز او ایران ته د تلو نه پس په ۱۹۲۲ء کښې وطن ته واپس راغلے وے - په دغه کتاب کښې د افغانستان ایران، ترکي او چخواني سویت یونین د مهمو سیاسي واقعاتو او حالاتو بیان د خبره ښکاره کوي - چې د هغه وخت لوئې استعماري طاقت انګریز د دې علاقې د ملکونو او قومونو په حقله څه پالیسي لرله او یو پښتون پوهان هغې ته څنګ کتل - د پښتنو د وطن د پښنو ذکر یې هم د دې خاورې او خلقو په حقله د انګریز پالیسي او رویه په ډاګه کوي -

په دغه حقله د هغه د یو بل ملګري عبدالاکبر خان یاد شوې لیک هم مهم حیثیت لري - هغه هم په جهاد کښې د برخې اخستو په غرض د کوره وتے وو خود انور پاشا سره په غزا کښې د شاملېدو د پاره روسي ترکستان ته لاړ - په دغه سفر کښې یې د هندوستان د آزادۍ د مشهورو مشرانو ایم - این - رائے مولانا برکت الله او عبدالرب برق سره ناسته پاسته اوشوه - د هغه ځایه واپس د هرات او قندهار په لار کابل ته راغلو هلته د مولانا عبیدالله سندهي سره د لیدو کتو نه پس په ۱۹۲۲ء کښې د

پښتون مبارز او مجاهد حاجي صاحب ترنګزو څواله د مومندو غازي آباد ته ورسېدو او دخپل وطن د آزادۍ دپاره يې په مبارزه کښې پوره پوره برخه واخسته - ددغه تجربې په بنياد هغه په ورستو وختونو کښې دانجمن اصلاح افاغنه او خدائي خدمتګار تحريک دمشرۍ پګړۍ په سر کړه -

ددغه دوارو سفرنامو ليکونکي مبارزين نامتو پښتانه پوهان او ليکوال وو - دوئ ددغه سفر د تجربو نه ډېر څۀ زده کړه - دغه زده کړې د پښتنو سياسي او اصلاحي تحريکونو او پښتو ادب ته ډېر څۀ اوبخښل. د پښتو ادب په مختلفو اصنافو کښې تر دې وخته ددغه زده کړې اغېزه ليدے او محسوسيدے شي -

***

د پښتو پیاوړو ، قهرمانانو لیکوالو او شاعرانو په حقله د ځینو لیکلو ژباړلو او ترتیب شوي کتابونو پېژندګلو څه داسې ده -

د عبدالروف بېنوا " پښتو روزنه " ( کابل چاپ ) د امیر کروړ نه تر امان الله خان پورې د پښتنو پیاوړو قهرمانانو یادونه لري -

" د افغانستان نومیالي " ( څلور ټوکه کابل چاپ ) دګڼ شمېر افغانانو مشرانو لیکوالو او شاعرانو په حقله سرسري معلومات لري -

" اوسني لیکوال " ( درې ټوکه کابل چاپ ) د روان دور د پښتنو لیکوالو تذکره لري -

د بناغلي بېنوا دغه درې واړه اثار په تذکراتي ډول لیکلي شوي او معلومات یې سرسري دي خو د دومره ګڼو کسانو یو ځای یادونه سرسري کېدې شي - په دغه بېلو بېلو اثارو کښې د ځینو شخصیتونو په حقله تکرار هم مناسب نه ښکاري خو د دغه کمزورو باوجود د دومره ګڼو کسانو په حقله معلومات راغونډول ، یو ځای کول او محفوظول د ډېرو لو خواري نه ده -

د همېش خلیل " د ورکه خزانه " ( پېښور چاپ ) د یو شمېر داسې پښتنو شاعرانو او ادبي اثارو په حقله تذکره لري چې تر دغه وخته په عمومي ډول نه شو پېژندې -

د حبیب الله رفیع " ادبي ستوري " ( کابل چاپ ) د ځینو لرغونو

پښتنو شاعرانو او لیکوالو په حقله تذکرې لري - په دغه یادو شوو کسانو کښې څه نومونه همېش خلیل پخپله "ورکه خزانه" او عبدالحلیم اثر په "سپرهېس شاعران" کښې یاد کړي وو.

د کبرئ مظهري "پښتنې لیکوالې او شاعرانې" د یو شمېر پښتنو لیکوالو او شاعرانو په حقله معلومات لري چې په هغوئ کښې د څېنو تذکره ترد ې وړاندې نه ده شوې.

د عبداللطف طالبي ژباړنه "خوشحال خان خټک" (کابل چاپ) د خوشحال خان خټک په حقله دغه اثر دوست محمد خان کامل په اردو ژبه لیکلے او د پښتونخوا خور شوے دے طالبي دغه اثر په پښتو ژباړلے دے.

د مولانا عبدالرحیم "جمال الدین افغاني" د افغان مشر او مذهبي عالم جمال الدین افغاني د فکري رجحاناتو او مذهبي خدماتو په حقله لیکلے شوے دے.

د ظاهر شاه خان ژباړنه "د چترال معرکه" د نامتو پښتون مشر او جرنیل عمرا خان په حقله دغه کتاب - ایچ - سي - تهامس په کال ۱۹۸۵ ( THE ) په نوم لیکلے او ظاهر شاه خان په پښتو ژباړلے دے.

د غني خټک ژباړنه "حضرت باچا خان" د پښتون مشر، اصلاحي شخصیت او سیاسي رهبر خان عبدالغفار خان د خدماتو د اعتراف په توګه د امریکې او سیدونکي ایکناف سواران "د مېن تو میچ هزما و نهتنز" په نوم کتاب لیکلے - غني خټک په پښتو ژباړلے او د پښتو ادبي سوسائټۍ

اِسلام آباد له اړخه خور شوې .

د عبدالرحمن لوګي "زه او حمزه" د حمزه سره د خپل تړون او تعلق په وجه لوګي د هغه په ژوند د هغه په حقله کتاب چاپ کړو. په دغه کتاب د لوګي د خپل ليک سره سره هغه د نورو داسې يو شمير کسانو ليکونه راغونډ کړي دي . چې چې د ياد شوي شخصيت سره پېژندګلو لرله .

د زرين انځور "د زنځيرونو شاعر" د لرغونې پښتون شاعر اشرف خان هجري د شعرونو مجموعه چې بناغلي انځور پرې علمي ليک کړې.

د اکبر کرکر "غني د شګو په محل کښې" (د کابل چاپ) په دغه کتاب کښې کرکر د غني خان په حقله د خپل ليک سره د هغه د شعرونو نمونې او نورو څو پښتنو ليکوالو ليکونه په ګډه چاپ کړي دي . د کاکړ د خپلې وينا مطابق هغه د دغه کتاب څه نيمګړتيا کانې په خپل هغه ليک کښې پوره کړې دی کوم چې د "څو ادبي يادونې" په نوم د کابل نه خور شوې دي . د دغه کتاب کومه برخه چې په معلوماتي لحاظ کمزورې او د موضوع نه خوشيدلې ښکاري . هغه د کوکر خپل ليک دې . د دغه د ورستي کتاب ورستي يادونې دی . کوکر عالم دې ، خواري کښ دې او د غني خان سره مينه لري .

خو په دغه موضوع د هغه ليکونو ښکاري چې د هغه د شاعرۍ موضوعاتي رنګ او فني خوند ته نه دې رسيدلې .

د زبير حسرت په ترتيب "د داکټر امين ژوند او فن" (د مردان نه خور شوی) په دغه کتاب کښې هغه مقالې او مضمونونه ترتيب کړې

شوي دي څهٔ چې دهغهٔ پهٔ حقله دهغه یوشمېر دوستانو لیکلي دي - دیو

تن دوو نه علاوه نورو ټولو لیکوالو خپلو لیکونو کښې دتحقیق غواړی نهٔ

ده کړې - پهٔ خصوصي دول دنورو ژبو حوالې غلطې رانقل کړې شوي دي.

دډاکټر اقبال نسیم خټک " دردانې " اود رنګ اوبو قافله "

دردانې دهغه مقالو مجموعه ده کومې چې داوسني دور دیو څو نامتو

شاعرانو په حقله لیکلي شوي دي -

" د رنګ اوبو قافله " دخلورو لرغونو پښتنو شاعرانو د ژوند او

فن پهٔ باب بحثونه لري -

دم - ر شفق په ترتیب دقلندر مومند فن اوشخصیت" (دپښتو ادبي

سوسائټي اسلام آباد له اړخه) پهٔ دغه یاد شوي اثر کښې د قلندر مومند

دلیکونو اوخدماتو پهٔ حقله مقالې ، مضمونونه اونور لیکونه دي او پهٔ

اخرې برخو کښې د قلندر مومند لهٔ اړخه دغني خټک دسوالونو جوابونه

دي -

داسماعیل یون " استاد زیار دپښتنې فرهنګ یو ځلاند ستوری "

(لاهور چاپ ) دعلامه سید جمال الدین افغاني فرهنګي ټولنې له خوا خور

شوې دغه کتاب دپښتون ژب پوهان ډاکټر مجبور زیار دادبي خدماتو

اولیکونو په حقله لیکلي شوي دي -

دتحقیقاتي زیار لهٔ کمي اوتذکراتي انداز لهٔ کبله یاد شوي اکثر

کتابونه بحث غواړي - خو کهٔ دغسې اوشي نو دموضوع دیوالي لهٔ

کبله به پهٔ بحث کښې دیکرنګي او بې ځایه اوږدوالي امکان پیدا کیږي.

لهٰذا دغه څو کتابونه به دنمونې پهٔ دول اخستل مناسب وي -

د ډاکټر اقبال نسیم خټک "درد اِ نے" هم د بحث ډېر ګنجائش لري خو

د هغوئ د "رنګ او بو قافله" زیات مهم اثر دے. په دغه کتاب کښې

د نامتو لرغونو شاعرانو عبدالحمید، کامګار خټک، کاظم خان شیدا او علي خان

په حقله څلور مقالې دي.

د بیکوال په خپل خیال "په دې مقالو کښې تحقیق تنقید هم شته

تدریسي ضرورتونه هم او د نیک معیار هم شته".

د کتاب د نوم د پاره د کاظم خان شیدا د شعر یو اصطلاح غوره کړې

شوې ده. شعر څه داسې دې.

د غنچې د رباط ورپه واکېده دے

قافله د رنګ و بُو د روې صبا شه

بیکوال د خپله ارخه دیو "ای" په ورزیاتولو دغه اصطلاح د خپله

طرفه پښتو کړې ده. د دغه مقالو د پاره په موادو راغونډولو کښې خوارې

شوې ده. څو د ګنو او اوږدو اقتباساتو رانقل کولو، د شاعرانو د زیات

شمېر شعرونو رانقل کولو، د هغوئ د شاعرۍ په مختلفو ارخونو کښې شمېره

صنعتونو او اصطلاحاتو د استعمال په حقله بحثونو او شعري حوالو د دغه

بیکونو رنګ و بو کمزورې کړې ده.

د پښتو شاعرۍ په تاریخ کښې د لوی نوم ناموس د خاوندانو په

حیثیت د یادو شوو کسانو په حقله ګنو کسانو بیکل کړي دي خو د دوئ

په حقله د څه بیکلو په وخت د هغه ټولو بیکونو نمونې رانقل کول ضروري

نهٔ دي. هر څوک د خپلې موضوع مطابق د ضروري بیکونو نمونې یادوي. خاصکر

هغه چې یا د بیکوال رائے د رنوي او یا ورسره اختلاف کولے شي. نمونې

د ټولو لرغونو شاعرانو موضوعات روماني ، اخلاقي ، مذهبي او صوفیانه دي خو د چا په کلام کښې دیوې موضوع غلبه ده او دچا په کلام کښې بله موضوع زیاته راغلې ده. دغسې هر شاعر زلفې ، ښګان ، رخسار .... صبر، قناعت همّت ستایلې دي - که دهغوئ په حقله یکونو کښې په دغه حقله د هغوئ ټول یکونه رانقل کولې شي - یا ددغه ټولو اصطلاحاتو ذکر کیږي یا د هغوئ ټول راوړي شوی شعری صنعتونه یادولې شي نو بیا خو به دهغوئ غونډ غونډ دیوانونه رانقل کیږي -

ډاکټر صاحب زما استاد دې - ډیر زیات خواري کښ او تجربه کار لیکونکې دې - ما دپاره دهغوئ یکونه او وینا ګانے د زده کړے باعث وي خو که هغوئ دیو ځانګړي سرخط لاندې ددغه ټلوړ وارو شاعرانو په موضوعاتو شریک لیک کړي وې او دبل سرخط لاندې ئې دهغوئ د شعری محاسنو په حقله لیکلي وی - او دا ئې ښکاره کړي وي چې په دوئ کښې کوم شاعر دغه موضوع ښنګ شعر کړې ده - او دغه صنعت ئې ښنګ استعمال کړې دې په دغه حقله ئې دهغوئ منتخب شعرونه رانقل کړي وي نو د بے ځایه اوږدوالی او تکرار مخ نیوې به ئې کړې وې -

د عبدالحمید ماشوال د ژوند په حقله دمیجر راورټي ، عبدالحی حبیبي دبښتین او افضل خان حوالې اوږدې دي - خو د اوږدو حوالو باوجود په دغه حقله څهٔ نوې خبره نشته - دومره ویل دحساب ډیر اسان سوال دې چې د سنه ۱۱۸۰ هـ او سنه ۱۱۵۰ هـ ترمینځه به دهغهٔ عمر شاوخوا اویا کاله وو. دغه رنګ دادعوی هم دحمید د شاعرئ او علم د تاریخ سره سمون نهٔ خوري. چې په ۱۱۲۳ هـ کښې به هغه دپنځوسو کالو په عمر کښې وو ځکه چې دجمال خان

او عيسیٰ خان د تاريخي واقعې ذکر يې په جامع ډول کړی دی او دغسې جامع او پوخ بيان د کم عمره شاعر کار نه شي کيدی[٩].

که د حميد ديوان په غور اوکتے شي نو په دغه واقعه ليکلی شعرونه دغه په منتخبو شعرونو کښې نه شي شميرلې کيدې او که فرض کړه ځوک يې اوشماری. نو د علم د تاريخ نه ثابته ده چې اکثرو عالمانو د ځلوېښتو کالو په عمر کښې لوی علمي کارنامې ترسره کړي دي. دغه وخت د انساني ذهن د کارکولو صلاحيت په عروج کښې وي.

د علي خان د ژوند او قبيلوی شناخت په حقله د مختلفو ليکوالو د متضادو رايو او رويو رانقل کولو باوجود د صفي تحليل او تجزيه نه ده شوې حالانکې په دغسې حالاتو کښې ليکوال ديوې حتمي رائے ځپلولو يا نوې رائے جوړولو په خاطر د تحليل او تجزئے نه کار اخلي.

د علي خان قبيلوي شناخت متنازع دی ليکوال په دغه حقله د مخالفو ډلو د ليکونو او پردئ اقتباسونه رانقل کوي. ديوے ډے د سرخيل عقاب خټک دليل لاجوابه، منطقي او وزني بللې[١٠].

ځينه ديو شعر په تشريح کښې دا شک ښکاره کوي چې کيدی شي شاعر دا د خټکو د علاقې نه د خيل هجرت په حواله ليکلی وي[١١].

دغه شک دهغه ديکلو مرثيو په باره کښې هم ښکاره کوي چې کيدی شي دائے د سهيلي سيمو د خټکو د نوابانو سعادت خان او رسول خان په حقله ليکلې وي ځوک چې د سن ١١٨٠ھ او ١٢٠٠ھ ترمنځه تېرشوي او په جنګونو کښې مړه دي[١٢].

د تحقيق د اصولو د رويه وزني، منطقي او لاجوابه دليل د منلو وړ دی.

د عقاب خټک دليل ديکوال په وينا دغه مقام ته رسيد لے دے او هغه په دې کلک ولاړ دے چې علي خان خټک دے . ديکوال خپل شکونه هم په دغه لور کاږلي دي . خو په آخر کښې د څهٔ بحث نه بغير ديکې يو خارجي دليل په بنياد هغه نه ممنزے وائي او دليل هم د قنبرعلي يو شعر دے . زهٔ خپله علي خان د هشنغر او سيد ونکي منم په دغه حقله د عقاب خټک دليل او د اقبال نسيم خټک شکونه وزني او منطقي نهٔ منم . خو په دومره مهمه موضوع يو شعر کله هم د اعتماد بوګه دليل نهٔ ګڼم او بيا د دغه شعر وجود خپله هم شکمن دے .

عبدالحليم آثر د مردان په مجله " قند " کښې په خپل ليک کښې د علي خان د زيګون کال سنه ۱۱۸۰ھ ياد وي . د خپلې رائے په دليل کښې د هغه دغه مصرعه وړاندې کوي .

" سن د هجر غرو و سرد کاني ترے کمند وو "

د عالمانو په خيال د ابجد و په حساب غر په ۱۲۰۰ او ک په شلو حسابيږي . هر کله چې د غر يعنې ۱۲۰۰ نه د کاني سر يعنې ک = ۲۰ کم شي نو سنه ۱۱۸۰ھ شي . خو قلندر مومند د صاحبزاده محمدي په ديوان ليکلي مقدمه کښې دغه شل ورجمع کوي او دا وائي چې دغه شعر د صاحبزاده د مړينې په کال سنه ۱۲۲۰ھ د هغه د مړينې په مناسبت سره ليکلي دي[۱۳] .

نسيم صاحب دغه تحويل په ځائے بللي . سړې نهٔ پوهيږي چې قلندر صاحب دغه منفي څنګه په جمع بدلوي او ديکوال يې ولے په ځائے تحويل مني - او که دغه په ځائې مني نو بيا چې د علي خان د زيګون د کال په حقله څهٔ خيال دي؟

د علي خان يو بل غزل هم متنازع دې . د دغه غزل په حقله هغه پخپله

يوه مصرعه کښې وائي .

" چې په نيت دصاحبانو د زيارت لاړ "

نوصاحبان ئې نهٔ دي ښودلي - دربشتين صاحب په خيال ئې دغه شيخ رحكارسره د عقيدت په خاطر زيارت كاكا صاحب ته ليږلي وو. دمياں تقويم الحق كاكاخيل په وينا ئې صاحبزاده محمدي ته ليږلي دي .

نو: ييكوال د دوارو رايو رانقل كولو باوجود په دغه حقله هيڅ نهٔ وائي. حالانكې د علي خان د قبيلوي شناخت په لړكښې دغهٔ ډيرځا ئے تعين ډېر ضروري دي ځكه چې ختک خاص كر د خوشحال خان ختک د كورنئ غړي د شيخ رحمكار عقيدتمند پاتې شوي دي او د هشتنغر اوسيدونكي خاصكر محمدزي د ټوكنو د مياں عمرصاحب د كورنئ عقيدتمند راغلي دي - البته د مياں تسنيم الحق د دغه رائے سره اختلاف ښكاره كوي چې كنې علي خان دغه د صاحبزاده محمدي په غزل تضمين كړې دې - ييكوال د علي خان د مرثيو چپل تحويل هم كړې دې په دغه حقله ئې د سويلي ختكو د نوابانو ذكر كړې دې خو عبدالحليم اثر د عوىٰ هم رانقل كوي - د كوهي ترمخه چې سعادتمند ، حبيب الله ، رسول خان او فيض الله خان د تنګي او شېرپاؤ د اولس ترمنځه د زمكې د تنازعے په جنګونو كښې شهيدان شوي دي - او د ټوكنو د مياں عمرصاحب په مريدئ كښې د شراكت په وجه ئې علي خان مرثيے ليكلي دي كه د اثر صاحب دعوىٰ درسته وي نو بيا د ييكوال شكونه بےځايه دي او كهٔ دغه دعوىٰ كمزوري وي نو بيا ئې په كمزورتيا خبره ېكار وه -

دغسې بيا غلي ييكوال د مياں صاحب دا خبره ډېره اهمه ګڼلې چې هوس خان د سوات د خوزي خيلو د قبيلے سردار وو او په جنګ كښې شهيد شوې وو.

علي خان ئې مرثیه لیکلې ده ځکه چې که ددغه جنګ تعین اوشي نو دعلي خان دزمانې تعین هم په اسانه کېدې شي .

خدائے خبر چې یاد شوې سردار به په کومه غزا کښې شهید شوي وي. تقویم صاحب یاد کړې خو تعین ئې نه دې کړې . نسیم صاحب مهمه واقعه بللې خو په دومره اوږده مقاله کښې متعین کړې نه ده . دغه ذمه واري په کله اوڅوک تر سره کوي او بیا دعلي خان دزمانې په تعین کښې به څه لاس اولري . دهغه دزمانې دتعین دپاره خو دهغه ددیوان دننې او کمې شمېره خارجي شهادتونه پوره دي . دغه تعین به دهغه په حقله کېدونکي لیکونو کښې دومره خبره زیاته کړې چې دغه وخت هغه یو عاقل بالغ شاعر وو .

په دغه کتاب کښې دکاظم خان شیدا اوکامګار خټک په حقله لیکونه دمعلوماتو اوبحث په حقله دقدر وړ دي . دکامګار خټک دشاعرۍ د موضوعاتو ، مضامینو او محاسنو اوږدې حوالې او نمونې که یو خواته کړې شي نو دهغه په ژوند اوفن شوې بحث دستائنې وړ دې په دغه لیک کښې دلیکوال نظر او انداز دیو بالغ اوتجربه کار محقق دے .

دقلندر مومند په حقله دشفق ترتیب شوې کتاب څه مواد هم دبحث وړ دي . په دغه کتاب کښې دقمر راهي رانقل کړې شوې وړوکې غوندې لیک دواقعتي تجزئے بهترینه نمونه ده .

دتقویم صاحب لیک دتجربے اودوستۍ دوارو په خوږو خوږ دې .

قاسم مظهر پخپل لیک کښې لوستونکي دشلمې صدۍ ددې لوې واقعې نه خبر کړي دي . چې دېر پخوا قلندرمومند دهغوئ دکلي زیارت کاکاصاحب په یوه

مشاعره کښې معیاري نظم اورولې وو -

ایاز داودزی د "قلندر ګجرې" ترسرخط لاندې دغه په یاده شوي افسانوي مجموعه او په هغې د دوست محمد کامل په یوه خبره کرې ده . دخپلې موضوع نه چاپېره چورلېدلې او خپل موقف یې بیان کړې دی .

دم . ر شفق یوه د موضوع په حقله د معلوماتو د کمې د احساس باوجود دیوه رنګ او د ژبې خوند لري . یکوال په ډېر صبر او مهذبه لهجه کښې د قلندر مومند صاحب د املاء د بنیادي تو کی "ه" سره خپل اختلاف ښکاره کړې دی .

یار محمد مغموم او سلطان صابر پخپلو موضوعاتو ډېر سرسوي تېر شوي دي . دسید محمود ظفر مقاله د عقیدت په رنګ کښې رنګ ده .

د وزیر محمد حسرت "ښېرانه قلندر" ټول عقیدت عقیدت دې

د رومان ساغر " دخیبرو داقلیم باچا " د ایوب صابر او قلندر مومند

سره دخپل تعلق او تېر راتېر ذکر دې .

غني خټک د قلندر مومند سره پخپله مرکه کښې اکثر تپوسونه

د املاء په لړکښې د باره ګلی د سمینار په حقله دي چې تپوسونه کمزوري

دي او که جوابونه - خو په دغه مرکه کښې د املاء په حقله هیڅ واضح موقف

نه جوړېږي .

عبدالهادي ماېار په خپل یوه " قلندر مومند د پښتو ژبې ستر محسن "

کښې د هغه ټول احسانات په ځای ځای پرېږدي او د هغه په متنازع احسان

متنازع خبرې کوي . د هغه د املاء اصول د پښتو رسم الخط او املاء د

صحیح کولو دپاره په سائنسي حقائقو بنا کښې . خپل اتفاق ورسره اعلانوي .

او نور خبروي چې انکار ترې نهٔ شي کېدې ؑ. خو دنور بحث او تحقیق ضرورت پرې محسوسوي. دد غه املا د خپلولو او نهٔ خپلولو پهٔ معامله کښې د نورو غونډې ما یاَر هم دخپلې مرضۍ خاوند دې.

خو! دد غه یک لوستونکي د هغهٔ نه ددې تپوس کولو حق لرې چې کهٔ تا ته دغه سائنسي حقائق معلوم وو او دد غه املا منکرې هم وې نو دخپلو لوستونکو نه دې ولې پټ ساتلی دي؟ په دغه حقائقو رابرسېره کولو به ستا پهٔ یک کښې درناوې هم پېدا شوې وې او د املا د مرستیالو شمېر بهٔ هم زیات شوې وې.

او بیا ترې دا تپوس هم کېدے شي چې کهٔ تا ورسره اتفاق لرلې دې او انکار ترې نهٔ شي کېدې نو د نور بحث پرې څهٔ ضرورت دې.

دد غه کتاب د ټولو نه ناشونې یک د پروفېسر اسرائیل اشنا "قلندر مومند دافسانه نګار پهٔ حېثیت" دے.

پهٔ دغه یک کښې د موضوع پهٔ حقله هیڅ نشته. جملې بې جوړه ترتیب وران او دعوې بې دلیله دي.

د موضوع پهٔ حقله د څهٔ لیکلو په ځائې اشنا د څهٔ تمهید او ضرورت نه بغېر د املا خبره کړې ده او د استاد په حېثیت ئې د هغې سره خپل مکمل اتفاق اعلان کړې دې.

اول خو د هغهٔ د موضوع د املاء سره څهٔ تعلق جوړېږي. د هغهٔ خبره خو د قلندر مومند پهٔ افسانو ده او دغه افسانې په هغه املاء کښې نهٔ دي چاپ شوي د کوم سره چې اشنا خپل اتفاق اعلانوي. کهٔ فرض کړه څهٔ تعلق جوړېږي نو پکار ده چې جوړ کړې ئې وې. ددې پهٔ جوړښت

ترکیب ، اهمیت او افادیت یې علمي بحث کړې وي او بیا د اشنا نه و لے دومره زر هېر شوي دي چې هغه په باره کلي کښې د پښتو اکېډیمي له اړخه د اِملاء په حقله شوي سمینار کښې د استاد په حېثیت شریک وو - په دغه سمینار کښې باقاعده غونډې کېدې - په دغو غونډو کښې بحثونه کېدهٔ خو دغه استاد یو ځل هم د دغه اِملاء په حقله هیڅ نهٔ دي ویلي دکومې سره چې په ځل یاد شوي یک کښې اتفاق اعلانوي[19] - بلکې دغه ټولو فیصلو سره یې اتفاق لرلې دی کومې چې په یاد شوي سمینار کښې شوې دي -

استاذان خو د ټول قام او خاصکر شاګردانو د پاره نمونې وي - دوئ ته خو د ځلو فیصلو احترام پکار دي - د اشنا غونډې محترم استاذ سره نهٔ ښائي چې په باره کلي کښې د ځوې اِملاء سره اتفاق کوي او په اسلام اباد کښې د بلې سره اتفاق اعلانوي - او کهٔ فرض کړه هغوئ د باره کلي په فیصلو کښې څهٔ علمي کمزوري لیدلې وی او دغه فیصلې د پښتو ژبې د پاره کمزورې نهٔ ګڼلې نو پکار ده چې د سمینار نور مبصرین او مندوبین یې هم په غوږ وهلي وې -

د ځل یاد شوی یک په منځ کښې اشنا ته نور پښتانهٔ افسانه نګار یاد شوي دي په دغه حقله یې یو داسې اوږد فهرست جوړ کړې دې چې په هغوئ کښې ډېر نومونه د افسانې د نوم سره نااشنا دي او اکثرې داسې کسان یاد کړي چې چرته یې یوه دوه غیر معیاري افسانې لیکلې دي - د پښتو د معیاري افسانه نګارو په قطار کښې دغسې کسان اودرول د پښتو د معیاري افسانې او افسانه نګارو سره بې انصافي ده -

دغه فهرست نه پس دځه کړېز نه بغیر اشنا د قلندر افسانو له راغلې دي او خدائے خبر دکوم کتاب د منځه ئې دا تصوّر راوړې دې چې ني تصوّر په اساسي ډول لاشعوري وي[21] - او قلندر مومند په لاشعوري طور د ژوند محبوبې ته د حقیقت تصوّر ورکوي - د ښځې د لاشعور تصوّر او ژوند د محبوبې د حقیقت تر منځه څه تعلق جوړیږي - او د روزلي، ویښ بیدار شعور ښځې قلندر مومند څنګه د لاشعوري تصوّر پابند شوې دې - د یاد شوي لیک د ډېرې خبرې د خندا دي -

نو! د اخري کرښو په لوستو ئې سړې حیران شي چې د قلندر مومند عقید تمند پروفیسر اسرائیل اشنا د هغه د "فن او شخصیت" څومره نا اشنا او بوکنونکي پېژندګلو کوي - دغه کرښې څه داسې دي -

"د پښتو ادب دا لویه خوش قسمتي ده چې قلندر مومند د چا هم نه مني او قلندر تر دې پورې چې دوخت او حالاتو هم نه مني.[22]"

زه د قلندر مومند احترام کوم د هغه خدماتو ته د قدر په نظر ګورم د هغه د فن او شخصیت په حقله یو خو څه چې څو کتابونه هم لیکلي کښم خو د یاد شوي کتاب اکثر لیکونه د چاپ قابل نه ښکاري - د هغه د فن او شخصیت سره هم او د پښتو ادب سره هم د انصاف کولو په خاطر دغه لیکونه چنوول پکار وو څه نه څه معیار لرونکو لیکونو ته د کتابي شکل ورکول پکار وو - د لیکوالو د نومونو او کتاب د مخونو په ځای د معیار خیال ساتل پکار وو - دغسې چې د پښتو سوسائټۍ سره کوم وسائل بچ شوي وو په هغې به ئې بل څه کټور ادبي خدمت تر سره

کړي وي . که نور څه نه وي نو هم د قلندر مومند د لیکونو مجموعه به یې چاپ کړي وي .

د اسماعیل یون یادښوی لیک د هرو لیکوالو د پاره نمونه کېدی شي ځکه چې هغه د کوم شخصیت په حقله لیکي نو د هغه د لیکونو نوموسه موضوعات او ډولونه هم وړاندې کوي .

د لیکوال په حیثیت د ډاکټر زیار شخصیت ګڼ اړخونه لري هغه په ګڼ شمېره موضوعاتو لیکل کړي دي . د دغه کبله یون هغه په مختلفو برخو کښې وېشلی دی . لکه ژورنالسټ زیار ، شاعر زیار ، څېړنوال زیار ، داستان لیکونکی زیار ، ژبپوهان زیار ، سریزه لیکونکی زیار ، مترجم زیار ، نقاد زیار ، د دغه هر زیار سره یې د هغه د لیکونو نمونه ، شمېر او د چاپ ډولونه یاد کړي دي . چې په هغې کښې د څادر ، کبړي ، ورزش ، لوبو او انځورګري یا رنګونو نه واخله تر سیاسي بیانونو ، ډیپلوماټک لیکونو او تر ژبپوهنې او ولې پوهنې پورې په هر څه چې هغه څه لیکلي نو د هغه یاد کړي .

د خپل استاذ سره د یون عقیدت په خپل ځای خو د دې خبرې سره اتفاق نه شي کېدی چې د زیار د ژورنالستي ژوند پوره وجه اقتصادي ستونزې وي . ښکله چې زیار په ډېر زیار لوی شوی دی - خو د کومو بیانونو حوالې چې اسماعیل راوړي - هغه د یو ژورنالسټ نه بلکې د یو سیاسي مبصر ویناګانې دي . د دغه ویناګانو ورځې هغه دي چې کله هغه د یو نامور دانشور په حیثیت د لوی نوم ناموس او اثر رسوخ څښتن وو او اقتصادي ستونزې یې نه لرلې .

د پښتو ژبې د طالب علم په حیثیت زه د ډاکټر زیار د ژبپوهنې

قدر کوم . د هغهٔ علمي وجود د پښتو ژبې او ادب لویه سرمایه او افتخار ګڼم.

خو ! دا ضروري نهٔ ګڼم چې هغه دې په هرڅهٔ ییک اوکړي بللې پهٔ ډېرو موضوعاتو د "هله داد" "انګوړکري" کیږو ، ورزش "جامو او څادر" مقاله ډېر کسان لیکلې شي . ډېر لیکلې شي او ښهٔ لیکلې شي .

"د شوروي اتحاد پهٔ شپېتهٔ کلن پېرکې د افغان شوروي د دوستۍ پرمختیا" هغه موضوع ده چې ګڼ کسانو پرې لیک کولې شي . حتّی چې د غسې اناد نظمونه او قطعې هم بیخي ډېر پښتنانهٔ لیکلې شي کوم چې موصوف لیکلې دي .

خو !"ګردودي" "لیکلار" "غږ پوهنه " "وسې پوهنه "او "پښتو پښتویه" ډېر کسان نهٔ شي لیکلې دغه د ډاکټر مجور زیار د کولو کار دې .

د درېمې دنیا عالم چې د خپل نوم سره د شاعر، افسانه نګار ، مترجم نقاد ، محقق او دغسې د نورو خطابونو ، القابونو اوږد فهرست نهٔ ویني نو ځان ورته سپک سپک او کمزوري ښکاري .

خو! د ډاکټر صاحب نوم د ژبپوهان په حیثیت هم ډېر درونډ دے .

پهٔ پښتو کښې د ژبپوهانو ډېر زیات کمې دے او بیا داسې عالمان خو د نشت برابر دي ځکه چې د ژبپوهنې د جدیدو اصولو او علمي لارو چارو خبر وي . زیاد دغه پوهه او معلومات لري . پکار ده چې د پښتو ژبې د تند پرمختګ پهٔ خاطر پهٔ دغه موضوع خپلو زیارونو ته دوام ورکړي اوکهٔ کولے شي نو چې خپله ژبه لږه ساده کړي . ځکه چې د هغوئ اکثر ناآشنا او ناشوني لغتونه د هغوئ د معلوماتو تعبیر ته بندونه وهي .

*

# د

---

په پښتو ادب کښې د تحقیق په حقله د همېش خلیل "تول پارسنګ" د همایون هما "د تحقیق فن" د زلمي هېوادمل "د متن څېړنې میتودولوژي" "د پښتو د ادبي تاریخ خطي منابع" "د هند د کتابخانو خطي نسخې" د حبیب الله رفیع "د پښتو کتاب پنود"

د صدیق الله رښتین "نوې څېړنه" "ادبي او تاریخي سموني" د عبدالباري اشنا "ادبیات" د عبدالحسب حلیمي "پښتو څېړنې (دوه جلده) د میجر هاورټي جارج راورټي "ګلشن روه" د دارمسټېټر پښتو څېړنې. د پادري هیوز "کلید افغاني" په ذره پورې آثار دي. په جدون پرنټنګ پرېس پېښور کښې چاپ شوې او د عبدالحی خان حبیبي په نوم ترلې شوې د همېش خلیل صاحب ذکر شوې کتاب د خپلې موضوع او متن په حواله یو مهم تحقیقي اثر دې.

د دغه اثر د قلندر صاحب د هغه نیک په جواب کښې وجود موندې کوم چې هغوئ د "پټه خزانه فی المیزان" په نوم د پټې خزانې په رد کښې لیکلې دې.

قلندر صاحب چې د کومو دلائلو په بنیاد د دغه مشهور تاریخي او ادبي اثر د ردولو هڅه کړې ده. همېش صاحب هغه دلائل رد کړي دي. په "پټه خزانه" د قلندر صاحب زیات اعتراضات ژبني او منطقي دي او د همېش صاحب جوابونه واقعیتي او تاریخي دي. همېش خلیل په خپلو کلکو

مدللو جوابونو د قلندر کمزوري ژبني اعتراضات رد کړي دي - البته دغه د اعتراضاتو منطقي اړخ یې په پوره ډول نهٔ دي مسترد کړے شوے، ځکه چې منطق خپل وزن لري خو ضروري نهٔ ده چې په منطقي ډول درسته خبره په واقعیتي او تاریخي ډول هم درسته وي - د منطق د دغه کمزورۍ نه د منطق استاذان هم خبر دي - کېدے شي چې همېش هم د قلندر د اعتراضاتو په دغه کمزورۍ پوهه وو او خپل جوابونه یې د تاریخ او واقعیت په حوالو جوړ کړي دي - دهٔ په خپل ذکرشوي اثر کښې داسې ویشتم ځنې د اخلاقو تر دوه څلوېښتم ځنې پورې[٢٢] د قلندر د ژبني او اصطلاحاتي اعتراضاتو په ذره پوري جوابونه کړي دي - دغسې ئې د رحمٰن بابا د مرېنې د نېټې په باب له هم د منلو وړ جواب کړے دے - اګرچې د دغو د جوابونو د پاره لږ دلائل هم پوره وو خو همېش خامخا د سخاوت نه کار اخستے دے او په اکثرو ځایونو کښې د حوالو او دلائلو شمېر ډېر زیات کړے دے -

خو: د تاریخي پس منظر او ځینو نورو سوالونو په جواب کښې په کمزورو دلائلو راوړو ، غیرمتعلقه او عمومي خبرو کولو خپل علمي او اخلاقي شان برقرار نهٔ دې ساتلے شوے -

لکه قلندر اعتراض لري چې

جیبي صاحب د دغه اثر د پټې خزانې د ترلاسه کولو ذریعے په بشپړ ډول نهٔ دي خودلي -

خو په جواب کښې همېش وائي چې پښتو اکېډیمۍ پېښور هم په معقول رقم د ترلاسه کړي کتابونو ذریعے نهٔ دي په ګوته کړي -[٢٣]

قلندر سوال دا پورته کوي چي

په افغانستان کښي د علامه عبدالعلي د پېژندګلو باوجود د هغه د مرګ خبر ولې خود نه شو او د هغه په مرګ یو دوه کرښې هم ولې اونه لیکل شوې ؟

خو ! په جواب کښي همېش دخپل کتاب په ۱۴۰ - ۱۳۹ مخونو وائی چي " بناغلي همعصر (مطلب قلندر مومند) خو دا سي انسان په مرګ په یوه ساه دري مرثیې لیکلې شي - چي د پښتونخوا کلونو دخپلو سیاسي غورزو پرزو نه پس خپله سیاسي نظریـه په اباسین لاهو کړي - دیو بهترین دشمن خلاف خو سیاسي جهاد شـروع کړي ولې دیو بل دېرظالم بهرني دشمن جارحیت ته هرکلي وائی - قوم دده د ورانـدې حلالولې شي - دملت دوینو د کور د ورانـدې دیالې بهیږي خو دا من دغه فرشته هیڅ نه وائی ولې بلا خه ئي خپل یو ملګری راهنما او محسن له مرګه پس مرثیه خو ډېره لویه خبره ده - د نفرت په دوه کرښو لیکلو هم اونه ارزېـد و "

مولف ر دېښتو خزانې مولف محمد هوتک) دغه وخت دېنځه ډېرش کلن باوجود هم ددغه ملي تحریک راوي خپل پـلار (داودخان) ګرزوي - دے په دغه ملي جنګ کښي پخپله ولې نه شاملید و -

خو په جواب کښي همېش خلیل دخپل اثر په ۲۲۱ - ۲۲۲ مخونو وائي چي -
" دېنغ په نبغه شرکت په وجه ئي پلار دحالاتو او واقعاتو قوي راوي وو - او ورنیا تو ي چي که په افغانستان د روسي جارحیت د افغان مجاهدینو او روسي فوځونو تر منځه دجنګ حالات کوم افغان مورخ د افغان مجاهدینو د کوم کماندر نه یا کوم بل شریک

شوي رهنما په روایت اوبیکي نو دے کښي به د اِعتراض کولو آخر کومه . . . . -

قلندر دا رائے لري چې -

" داودخان ( د محمد هوتک پلار ) د ۹۱ کالو په عمر کښي د میرویس غونډې هوښیار جرنیل د جنوبي لښکرو خلاف جرنیل نهٔ شي کیدے.

خو : په جواب کښې همېش په ۲۲۱ مخ وائي چې -

" اول خو میرویس جرنیل نهٔ وو ځکه چې پیر روښان او پیر ایپي جرنیلان نهٔ شي منلي او ورنیا توي چې یو امریکني جرنیل په دوارو لویو جنګونو او تر مرګه پورې جرنیل وو -

زهٔ د دغه دوارو پښتنو عالمانو د شاګرد په حیثیت هم تیم خو د قلندر صاحب دا رویه د تحقیق په اصولو درسته نهٔ منم چې د بل چا غلطي د بشریت د تقاضے له رویه جواز لري خو د محمد هوتک د غلطۍ جواز نهٔ شي کیدے او نهٔ د همېش صاحب ذاتي حملے او عمومي دعوې مناسب ګنړم -

زما په خیال د قلندر د دغه سوالونو او اعتراضونو د بر جوابونه کیدے شي خو دغه نهٔ شي کیدے کوم چې همېش کړي دي -

کهٔ فرض کړه پښتو اکیډیمي په معقول رقم د چا نه کتابونه ترلاسه کړي وي او په خپل ریکارډ کې ضروري تفصیلات نهٔ وي ساتلي نو دا به هې ښهٔ نهٔ وي کړي ځکه چې د غسې د علمي او مالي بد دیانتۍ احتمال پیدا کیږي ولے چې اول خو به د بشپړو ذریعو د نشتوالي په وجه د کتاب د وجود سلامتي شکمنه شي او بله به دا معلومه نهٔ شي چې په دغه لړ کښي په ریکارډ موجود خرڅ شوې رقم او متعلقه سړي ته ورکړے شوے

رقم خپلو کښې څهٔ کمے زیاتے خو نهٔ لري ۔ داکېدلے شي چې رقم دټول قوم دے
دهغې د حساب کتاب نه ځان خبرول دهر پښتون فرض دي ۔

د علامه عبدالعلي د مرګ په لړ کښې د افغانانو د ردِ عمل په حقله
د قلندر د اعتراض په جواب کښې دهمېش وینا غیر متعلقه او عمومي ده ۔

د یو قلندر یوه نادرسته رویه د ټولو لیکوالو او ادبي ادارو د غلطۍ جواز
نهٔ شي کېدے ۔

دا هم معلومه نهٔ ده چې قلندر د خپل کوم محسن او راهنما په حقله
مرثیه نهٔ ده لیکلې ۔ همېش په دغه حقله خپله لیکلې مرثیه یا بل څه
یاداشت هم نهٔ دې رانقل کړي چې لوستونکي ترینه اندازه اولګوي کنې هغوئ
خو به په دغه حقله ضرور څهٔ کړي وي ۔ ځکه چې په ماضي قریب کښې د
دوئ دوارو محسنان او راهنمایان شریک پاتې شوي دي ۔ حتیٰ چې هغه انسان
هم په شلګونو کلونو د دوئ شریک پیر و مرشد پاتې شوې د چا په مرګ
چې په مرثیو لیکلو همېش قلندر ته پېغور ورکوي او چا چې د همېش
په خیال د ښېښتهٔ کاله غورزو پرزو نه پس خپله نظریه په آباسین
لاهو کړې ده ۔

زهٔ د هغه انسان مرید یم او نهٔ ډېر زیات معتقد خو د یو باشعوره
او باخبره پښتون په حېث دا خبره په وثوق سره کوم چې هغه تر مرګه
پخپلو سیاسي او اصلاحي نظریاتو کلک ولاړ وو ۔ که په یو دشمن ئې ایله
نهٔ ده کړې نو په بل دښمن ئې هم مخ نهٔ دې پرېښودے ۔

البته د دشمن شکل ، د جنګ نوعیت او د وخت نزاکت ئې پېژندو
د کوم جنګ او تباهۍ په حقله چې د همېش صاحب په خیال د امن د غه

فرشته چپ پاتې شوې ده ـ په حقیقت کښې په دغه حقله هغه دېرځه وئیلي ـ درست یې وئیلي ـ د روس او امریکې په دغه جنګ کښې د پښتون تباهۍ ته هغهٔ به وئیلي او قام ته یې د صلحې او روغې جوړې خواست کړې ـ نن چې روس په هغه ځائې نشته نو امریکه او د امریکې د لسیز هغه جنګ ته څه نوم ورکوي ـ نن چې هغلته د ملّت وینې بهیږي ـ قوم حلالیږي نو داڅوک کوي ـ په دغه تباهۍ کښې به هم‌هش خپلو ذمه وارو قبلولو ته څوموره تیار شي ـ

دېرګڼ وجوهات کېدے شي چې محمد هوتک ته به خپل پلار د ځانه زیات مستند راوي ښکارېدو ـ خوکهٔ د هغهٔ پلار په دغه ملّي جنګ کښې د قام مشرې کوله نو هغه ترې څنګه یو خوا ته پاتې کېدې شو ـ

د پښتنې ټولنې د جوړښت ، پښتنې دوایاتو ،انساني رشتو او هغې زماني د حالاتو تقاضا وه چې هغه به د خپلې کورنۍ د نورو مشرانو او زلمو غوندې په دغه جنګ کښې پوره برخه اخستې وي خو د نامعلومو وجوهاتو لهٔ کبله یې ذکر نهٔ دې کړې او نهٔ یې پخپلو لیدو کتو د پلار د روایت د تصدیق ضرورت محسوس کړې دې ـ

ترڅو چې د کوم افغان کمانډر یا بل رهنما په حواله د ذکر شوي جنګ د تاریخ یېکلو سوال دې نو نور څوک پرېږده چې دوئ به خپلو کښې هم دیو بل وېناګانو منلو ته تیار نهٔ شي او بیا په نننۍ دنیا کښې هیڅ یو داسې ساده او ترن اساني مورخ نشته چې د دومره مهمې واقعې تاریخ به دیوې ډلې دیو مشر په وېنا او لیکي او کهٔ فرض کړه څوک داسې پیدا شي نو د هغهٔ په لیکونو به ډېر زرګونه اعتراضات اوشي ـ زما په

خیال په دې همېش خلیل ترڅ چا سنهٔ پوهیږي او زیات معلومات لري
څو خدائے خبرچې دکوم مصلحت ترمخه دومره ګرانے خبرے داسې اسانوي.
خدائے خبرچې د کوم مصلحت تر مخه به میرویس خان د۹۱ کالو داود خان
دخپل ښنکر د مشرۍ جوګه ګڼلي وي او هغه دکومې مجبورۍ له کبله په دغه
عمر کښې دغه مشرۍ ته غاړه اېښودې وي ځکه چې په دغه عمر کښې
انسان په ذهني او جسماني ډول دداغسې مشرۍ کولو جوګه پاتې نهٔ شي.
په دغه حقله د امریکني جرنېل دلیل راوړل هم درست نهٔ دې ځکه
چې هغه دیو منظم ریاست دیو باقاعده فوځ جرنېل دې خو داودخان
دیوې علاقې دیو قبائیلي ښنکر مشر دې. میرویس خان ته په جرنېل
ویلو اعتراض کول هم بې ځایه ښکاري. د قبائیلي ډلو پرو مشران په
عمومي ډول د سیاسي تدبر سره سره د ښنکرو تنظیمولو او جنګولو دهنر
نه هم خبر وي او اکثر خپله هم په جنګونو کښې شریک پاتې شوي وي
په عمومي ډول داغسې مشرانو ته تجربه کار جرنېلان ویلے شي خو دغه
باقاعده جرنېلان نهٔ وي. په اوسني وخت کښې هم د بلوچو څینو سیاسي
مشرانو ته ددغه خوبیو په برکت جرنېلان ویلې شي. چې په هغوئ
کښې دجرنل شیروف (خدائے بخښلي شیرمحمد مري) دنوم نه همېش صاحب
خپله پوره خبر دې.
دهمّا صاحب یاد شوې کتاب د مردان د ادارهٔ فکر وادب له ارخه
چپور شوې چې یو سل څوارلس مخونه لري. په دغه مخونو کښې دمختلفو
عنوانانو لاندې اتـه مقالې څه داسې خورې دي.
(۱) دتحقیق فن (۲) دمقاله نګارۍ رسمیات (۳) دموضوع تعیّن

(۴) بنیادي او ثانوي ماخذونه (۵) متن څهٔ ته وائی (۶) حاشیې او اقتباسونه

(۷) دتنقید مختلف قسمونه (۸) تخلیق وتنقید۔

پهٔ دغه وړوکي غونډې کتاب د ژباړن په حیثیت د زبیر حسرت نوم لیکلې شوې دې او د هغهٔ دخپلو خبرو مطابق هغه چې د علامه اقبال اوپن یونیورسټي نه داهم قِل کولو پهٔ لړکښې دخپلې تحقیقي مقالې په لړ کښې د موادو په ترتیب او حاشیه نګارئ کښې د استاذانو او کتابونو د اردو انګریزي نه د تحقیق دتکنیک او طریقو کومه زده کړه کړې ده او د کورس ورک پهٔ دوران کښې ئې کوم مضمونونه لیکلي وو نو هغه ئې په پښتو کښې د اصول تحقیق پهٔ حقله د بنیادي کتاب دنشتوالي پهٔ سبب پهٔ پښتو کښې خواره کړه د هغهٔ دوینا مطابق د رومبي مضمون نه سېوا ټول په اردو کښې وو۔

د تحقیق فن د محقق ډاکټر غلام مصطفٰی یو توسیعي لکچر دې چې د هغهٔ پهٔ منه هغهٔ صاحب خپله ترجمه کړې۔ دغسې تخلیق او تنقید د سجاد باقر رضوي مضمون دې چې د مغرب کے تنقیدی اصول" نه ترجمه کړې شوې دې۔

د هغهٔ دغه یکوشنه پهٔ اردو ژبه کښې پهٔ څهٔ یو کتاب یا مجله کښې نهٔ دې خواره شوي نو د اردو پهٔ رنګ کښې د رنګ کېدو باوجود یې د معیار پهٔ حقله څهٔ ویئل ګران دي۔ کهٔ فرض کړه هغهٔ صاحب تر اوسه پورې پهٔ دې خبره ولاړ وي چې دغه ژباړنه هغهٔ خپله کړې ده نو هسې ئې پرې دبل چا نوم اچولې دے۔ نو د مصلحت نه خدائے خبر نو پهٔ پښتو کښې د تحقیق دلوئې علمبردار دلاسه به د تحقیق سره بې انصافي شوې وي۔

اوکهٔ فرض کړه همّا دغه خبره پهٔ مختلفو محفلونو کښې هسې د خندا
جذباتي حادثے لهٔ کبله کړي وي او پهٔ حقيقت کښې هم زبېر حسرت دغه
ژباړنه کړي وي نو بيا هم همّا صاحب ما ته د مردان د نامتو ليکوالو ډاکټر
اسرار او اندېښنې شمس القمر پهٔ مخکښې ويلي (د دغه وخت د همّا مشرزوئ
هم موجود وو) چې دغه کتاب مې پخپله ترجمه کړې خو هسې مې پرې د زبېر حسرت
نوم کړې دې او اوس پهٔ دغه فيصله پښيمانه يم. دغه خبره هغوئ نورځو
ځايه هم کړې ده.

د ژباړنکو نومونه دوه پکار وو. ځکه چې د همّا د خپلې وينا مطابق هغه
د دغه کتاب پهٔ اتو مقالو کښې دوه خپله ژباړلې دي - دغه دواړه مقالې
چې د کتاب پهٔ څو مخونو خورې دي د مغې شمېر د نورو ټولو مقالو د مجموعي
مخونو سره لږ فرق لري.

د همّا دغه مضمونونه چې کوم سرخطونه او حوالې لري په دغه سرخطونو
او حوالو د اردو ژبې د ځينو نامتو ليکوالو مقالې زما د نظره څهٔ داسې تېرې شوي
دي - پروفيسر سعيدالدين احمد ډار "تحقيق ميں حواشى، حواله جات اور اقتباسات"
عبدالرزاق قريشى. "فن تحقيق" مقاله كى تسويد[۲۵] "موضوع كى جانچ پركھ"[۲۶]
ډاکټر تنوير احمد علوي "متن روايت متن"[۲۷] "تنقيد متن"

د دې نه علاوه د اعجاز راهي او سلطانه بخش پهٔ راغونډو کړي شوو کتابونو
کښې يو شمېر نور د غسې ليکونه شته دي چې د موضوع پهٔ لحاظ د همّا د ليکونو
سره ډېر نزديکت لري.

خو! د سرخطونو او حوالو يو شان والے دومره لوئ فرق نهٔ غورزوي البته
پهٔ چاپي شکل کښې د نشتوالي پهٔ سبب نهٔ شي ويلې کېدے چې د همّا دغه

اردو ليکونه د ذکر شوي ليکونو سره د ژبې متن او موادو په حواله څه نژدېکت لري او کنه ؟

د متن څېړنه د تحقيق يو مهم اړخ دے . دغه مهم کار خپل هنر او خپله طريقه لري . په دغه حقله د ذلمي هېوادمل ذکرشوي کتاب د ستائنې وړ دي . د افغانستان د علومو د اکاډيمۍ له خوا خورشوې دغه اثر د اکاډيمشن محمد صديق روهي په خيال " په دغه موضوع ړومبی څانګړې کتاب دے . د متن څېړنګو د پاره يو لارښود ...[28] "

او د سر محقق اکبر معتمد جنتي شينواری د رائے مطابق " د خپل فن په ټولو مطالبو حاوي دے او مربوط جزووي موادي په خپل بطن کښې ځائې کړي دي[29] . "

دغه کتاب ټولې د ولس مقالې لري چې درې پکښې د پښتو متن د تاريخي پس منظر د بارو او روښونو په حقله هېوادمل خپلې ليکلې دي او نورې ژباړنے دي . چې د متن څېړنې په مختلفو اړخونو رميتو د ونه د تحقيق اصول ، تحقيق و تدوين ، تصحيح او تحقيق ، مخطوطات ، نسخه پوهنه اصلي متن ، د متن نقد ، د تصحيح طريقې ، اصلي منشا ) حاوي دي .

په دغه کتاب د ليکوال او ژباړن د خپلې سرينے مطابق هغهٔ ته دغه کار د ترسره کولو احساس په هند کښې شوې وو . هلته ئې د ډاکټر خليق انجم او ډاکټر تنوير احمد علوی مستقل اثار د نظره تېر شوي او دوه داسې کتابونه ئې هم لوستي دي چې د هندوستان د نامتو محققانو او متن پوهانو مقالې پکښې را ټولې کړي شوي وي .

اکرچې محقق په ډېره ايمانداری سره خپلو ژباړنو ته ژباړنے ويلي

دي نو دغه کتابونو نومونه چې نه دي رانقل کړي کوم چې هغه په هند کښې لوستي وو او نه چې د مقالو نومونه او ځايونه ياد کړي دي نو نه شي ويلے کيدے چې دغه ژباړے اصل ته څومره ورته دي خو بيا هم دغه کار په پښتو کښې بنيادي حيثيت لري او په دغه حقله نورو کارکوونکو ته ئې اسانيه پيدا کړې دي -

د پښتو د ادبي تاريخ د خطي منابعو په حقله د افغانستان د علومو د اکاډمي له خوا د هيواد مل ياد شوی اثر هم د ستائنے وړ دي - د ليکوال د خپلې سريزے د معلوماتو په رڼا کښې دغه اثر د هغه پښتو قلمي نسخو په اساس ترسره شوي کوم چې هغوئي د پخواني سوويت يونين د مختلفو ښارونو په لائبريرو کښې لوستي - هغه د دغه هرې نسخې د ليکونو شمير، اندازه او شرح ياده کړې ده - د دغه نسخو د متون او لوستو په حقله د هغه خوارئ د هغه د دغه سفر مذکور و ميرحسن شاه او جنتي شينواري پخپلو هغه ليکونو کښې ستائلې ده کوم چې ئې په دغه کتاب کړي دي - په دومره خوارئ او مينه شوي کار يقيناً چې د ستائنے وړ دي -

په دغه حقله د هيواد مل يو بل اثر " د هند د کتابخانو خطي نسخې " هم د يادولو دي - دغه په اصل کښې يو فهرست دے خو محقق د هرې نسخې ځانگړي خصوصيات هم په نخښه کړي دي - د غسې د غه زلمي محقق " د پښتو د ادبي تاريخ له منابعو څخه ځنې اشارو ته کره کتنه " " د پښتو د ادبي تاريخ د منابعو پيژندنه " د ادبي تاريخ ميتودولوژي او د دغه ډول په نورو ورو لويو اثارو راتلې ته کولو او موضوعاتو څيړلو د پښتو ادب تحقيقي پنگې ته ډېرڅه بخښلي دي - د ادبي تاريخ د منابعو

او پښتو دولوژي په حقله د هيوادمل سره د نورو محققينو او ادبي تاريخ ليکونکو اختلاف کېدے شي خو د دغوئ د اشارو د بنيادي نوعيت او ادبي اهميت نه به هيڅوک هم انکار اونهٔ کړي شي .

د پښتو دګڼ شمېره کتابونو ، مجلّو او نورو اشارو خوړ ووړ ذکر په مختلفو کتابونو مجلّو او ورځپاڼو کښې موندې شي خو په يو کتاب کښې د راغونډولو خواري ئې بناغلي حبيب الله رفيع کړې ده . د هغهٔ په ياد شوي کتاب کښې د حروف تهجي په ترتيب د ليکوالو او د هغوئ د اشارو نمونه راغونډې کړې شوي دي .

اګرچې په دغه کتاب کښې د يو شمېر کتابونو ، مجلّو او ليکوالونو نمونه نشته او د ځينو ليکوالو د اشارو ذکر نيمګړې دے خو بيا هم د يادونے وړ خواري ده او د تحقيق کونکو د پاره ې يو شمېر اسانتياګانے پيدا کړي دي .

د پښتنو په خاوره د زېږېدلي تهذيبونه او پښتو ژبې د لرغونو په حقله د صديق الله رښتين ياد شوے اثر (زوړې څېړنه) د يادونې او څېړنے وړ مواد لري . د يونيورسټي بک اېجنسي پېښور له خوا خور شوي دغه کتاب د مختلفو سرخطونو لاندې يو شمېر څېړنې لري . د دغه څېړنو ترمخه د دنيا اکثر لرغوني تهذيبونه ، اکثرې سترګه ورې قبيلې او زړې ژبې د پښتني خاورې او پښتو ژبې په رنګ کښې رنګ دي .

"د تمدن زانګو" تر سرخط لاندې څېړنه د زوړ عراق سومريان او پخواني مصر قبطيان د موجوده افغانستان د مختلفو علاقو څخه کوچېدلي يادوي .

په "يوناني تهذيب" کښې يوناني مدنيت له اېشيا اخستې شوي کڼي او د

بحث نه پس په مبهمه لهجه کښې یونانیان د افغانستان د نورستان او بلخ

نومې ځایونو څخه تللونکي یادوي . د "بودائي مدنیت" تر سرخط لاندې

بحث بودا (بدها) د هغه ساکیا قبیلې د کښتري طبقې څخه یادوي کومه چې

د افغانستان د شمالي برخو نه د همالیه لمنو ته کوچیدلې وه . د دغه بحث

تر مخه د بودا نوم "راهولا" وو . او د ساکیا موني لقب ورکړې شوې وو .

چې معنا یې د ساکیا قوم پرهیزګار کیږي . موني په پښتو ژبه کښې دیښې

لري . د من د کلمې نه جوړه شوې . من زړه ته وائي او موني د زړه

خاوند . دغسې ورسره د بودائي مذهب د ژبې "پالی" او پښتو کښې

د نومونو نږدیوالي یادوي .

د ایلالي تر سرخط لاندې څېړنه د عراق په پخواني تاریخ کښې

یاده . ایلالي پرګنه د پښتونخوا د "ایلم" نومې غره نه کوچیدلي یادوي

او ځان سره یې د دغه ځایه د تمدن په ورڼکو شغلو د دجلې او فرات

غاړې رڼې کړي دي

"د پښتو لرغتوب" هغه څېړنه ده چې کومه د ژبو د وېش په حقله د

علمي بحث په څنګ کښې د باختري ژبو د یوځائي کړي بناخ پښتیکه

دعوئ لري . په دغه بناخ کښې پښتو ، بلوچي ، اورمړي ، پراچي او د

کوه هندوکش د خواوشاه نورې ژبې حسابوي مګر پښتو ته پکښې د لوې

مور ځای ورکوي .

د ژبو په پېژندګلو کښې پښتو ، اویستا او سنسکرت مهمې ژبې ګڼې

خو په دوئ کښې یوه پښتو ژوندۍ یادوي . د علاقې د نورو ژبو

او پښتو د نږدیکتونو په بحث کښې د پښتو او ګیلکی د نږدیکت په څېړه

ډېر زور راوړي شي ځکه چې دغه د ما زندران په سیمه کښې ګیلک خلق وایي او د اوسني پارسي په نسبت ډېره زړه ده .

" دعربي او شرقي ژبو نزدیوالي" په دغه کتاب کښې هغه څېړنه ده چې څو کلمې لکه "نیل" "اَتنا" او کوپاسوس (کپاس) پکښې د پښتانه څخه یونان او اروپا ته تللي یادوي .

" دالبیروني په اثارو کښې د پښتو لغات" ترسرخط لاندې یک یو شمېر داسې کلمې رانقل کوي چې د یکونکي په خیال اصلاً پښتو دي .

د "ادب دکلمې څېړنه" د ادب د اصل دب ، دپ ، داب او داپ رښې په پښتو کښې په نخښه کوي .

دغسې "د کاول او کابل" " پښتون او افغان" "مورپلار" او "دور" د سرخطونو لاندې د دغه کلمو په څېړنه د پښتو او پښتنو لرغتوب یاد شوي دي . لکه کابل ئې د ګ وېد کوبهه کوبها کلمه یاده کړې . دغسې ئې ورله څلور زره کاله تاریخ یاد کړې دې .

دښتین صاحب لوی پښتون عالم او ذمه وار لیکونکي دي . د هغه لیکونه د قدر وړ دي .

خو! زه په ډېر احترام سره د هغوئ د دغه څېړنو سره اختلاف لرم ځکه چه هغوئ کومې قبیلې او ټبرګنې دي چا یه کوچیدلې ګڼي د هغوئ د اصلي ټاټوبو او کوچونو په حقله د تاریخ استاذان نورې رائې لري خو هغوئ پخپلو څېړنو کښې د هغوئ ذکر نه دې کړې . بیا نه خو دغه څېړنې د دغه کوچونو په حقله کوټلې معلومات لري . او نه هغه حالات بیانوي د کومو ترمخه چې د دغه مهذبې ټبرګنې د خپلو ټاټوبو

نه پهٔ دومره لږې کوچ مجبورېږي شوي . هسې هم ددغه ځېړنو بېلګې او حوالې لغات اوکلمې دي .

اول خو دغه راوړې شوي کلمو کښې پهٔ اکثر د نورو ژبو دعویٰ هم کېدې شي لکه پهٔ بوداىٔ مدنيت کښې " من " پهٔ ايلالي کښې " ايلالي " د "غربي او شرقي ژبو نزدې والي" کښې " اتنا " دالبېروني پهٔ اشارو کښې "برخ " "ډول" "چاکر" "خزدوک " " دروزي" "کند " "کشف" "بيد" "وېد" " ماشه " "صت" "کروه" " پاتال" وغېره .

د ادب دکلمې ځېړنه کښې "د ب" . " د پ "پهٔ کاول اوکابل کښې "کاول اوکابل" اوکهٔ فرض کړه دغه لغات اوکلمې پښتو اومنلې شي نو بيا هم پهٔ دغه بنياد دمنلو وړ نظرئے نهٔ شي جوړېدې . کهٔ دغسې کېدې شي نو بيا خو به د پکي او پوکي تر مينځه ډېره جوخته رشته وي - مشين بهٔ د مېچن جوړ شوي وي - دغه مېچن بهٔ آريائ پرګنو دافغانستان نه جرمني ته وړي وي او دغه ځايه بهٔ يې برطانيے ته رسولې وي .

"جر" " بر" او"امر" هغه کلمې دي چې پهٔ پښتو کښې رلينبې لري. جرمني ، برطانيه او امريکه ددنيا ياد ملکونه دی او ددغه کلمو د تعبير او تفسير مشتق او اشتياق پهٔ حوالو ې د پښتو او پښتنو سره تعلق جوړېدے شي .

" فراه " په افغانستان کښې تاريخي ځائے دے او"فرانس" پهٔ مغرب کښې يو مشهور ملک دے - ددغه ډول تحقيق د مخه " ه " په "ن" اوړېدې شي او "س " ورسره پهٔ يوه خاص تاريخي دوره کښې ورزياتېدے شی او "سپين" خو خالص پښتو کېدې شي ځکه چې "سپين" خالصه

پښتو کلمه ده .

دغسې خو به د ټولو ژبو مور پښتو ، د ټولو قومونو پلار پښتون او د ټولو پرګنو اولنۍ ټاټوبی افغانستان شي .

خو دغسې نه ده نه کېدې شي او نه دغسې کول د پښتو او پښتنو په حېثيت ، حرمت او درناوي کښې څه فرق راوستې شي .

دغه هر قام او هره ژبه د خپل جوړښت ، حرکت او بدلون تاريخ لري . د دغه هر تاريخ په باب ګڼ را پيدا کولو او حوالو ټاټکو کښې دېرے لوئ لوئ خوارے او زيار وسله شوي دي . هغه خواري او کړاونه ، بېلګې او دستاويزات د يو څو لغاتو او کلمو په ريښو د منځه نه شي وړې کېدا .

دغسې څه دعوې يو جل پښتو پوهان خدائ بخښلي حسن بخش کوش هم پخپل " طوفان " نومي اثر کښې لرلي دي .

خو ! هغه هم چا د باور جوګه نه دي ګڼلي .

او سنی زمانه کښې د قومونو ، قبيلو او پرګنو د اصل نسل ټاټکو د ژبو د جوړښت ، ارتقا او اخستن ماخوذ معلومولو د پاره ګڼ شمېره " الات " " معلومات " دستاويزات او علمي څېړنې په کار راوستې شي .

د دغه ټولو په ذريعه چاڼ کړي او تر سره کړې شوي معلومات او په هغې جوړې نظرئ د باور جوګه ګڼلي شي .

خو ! د خپلو نيمګړتياګانو باوجود هم د رښتين صاحب " څېړنے " قدرمنې دي ځکه چې په دغه حقله د نورو څېړنو د پاره که باوري بنياد نه وي نو رجحان او رويه خو پيدا کوي . لمسه خو کوي . پښتو يکو نکو

ته دغسې لمسه کول . په پښتنه ټولنه کښې د شعرونو رجحان او رویه پیدا کول هم د ډېرې ستائنې وړ خدمت دې .

د تحقیق او عملي تنقید په حقله دیونیورسټي بک ایجنسۍ پېښور له اړخه د ښتینې صاحب دوېم خور شوې کتاب هم د یادونې وړ دې . دغه کتاب یو شمېر ټیکونه لري چې په کتابي شکل کښې دخوړېدو نه وړاندې په ځانګړې ډول د افغانستان په مختلفو پښتو مجلو کښې خواره شوي دي. په دغه ټیکونو کښې دیو شمېر ټیکونکو دچاپ شوي اثارو په ځینو ټړوتنو ګوته ایښودې شوې ده . او دهغې د سمون هڅه شوې ده .

لکه په "ورمې" نومې مجله کښې د ښاغلي پالوال په هغه یک ټکونه شوي دي کوم چې د ډېرو هغې د نوي متود په رڼا کښې " دپښتو نوی مصدر" په نوم چاپ شوې دې .

" دخېرالبیان لغتناې ته یوه کتنه " دځینو لغاتو دهغه معنو سره اختلاف لري . کوم چې دخېرالبیان په پېښور چاپ او کابل چاپ کښې د مولانا عبدالقدوس او پوهاند رشاد له خوا شوي دي .

" د تاریخ مرصع سریزې ته یوه کتنه " کښې یو خوا د کامل صاحب د سریزې ، مقدمې او نوټونو او ورد والې مناسب نه ګڼي نو بل خوا ئې د عبدالقادرخان او افضل خان په باب وهنا ګانې زیاتے ګڼلے دې .

" تېر هېر شاعران ته یوه کتنه " دخدایي بخښلي عبدالحلیم اثر د ځینو تېروتنو په نخښه کولو سره سره دهغې د سمون تابیا لري .

(دغه کتاب د ۱۹۶۳ء ایډیشن پېښور)

په (۸۲ - ۸۳) مخونو د میان کریمداد او کریمداد بنګش تېروبېر کول .

په مخ (۸۳) بي بي نېک بخته او بي بي ګُله يو کړل او په مخ (۸۴) اخون قاسم او شيخ قاسم افغان يو کړل هغه تېروتنې دي چي رښتين صاحب په نخښه کړي او سمي کړي دي .

"ادبي ستوري ته يوه کتنه" هغه پېک دی چي د پښتو ټولنې کابل له خوا خور کړی شوی د حبيب الله رفيع " ادبي ستوري کښې شوې غلطۍ په نخښه کوي .

لکه د ميان علي محمد او علي محمد مخلص يو کړل ، د فقير نومي شاعر له خوا کيمياى سعادت پښتو کول ، مشهوره عربي قصيده برده په رومبي ځل پښتو کول د محب الدين کارنامه کړل . په څو نعتيه شعرونو روف جان ماما ته خوږ ژبي شاعر ويل د شاعرانو په ستائنه کښې مبالغه کول . د سمون په لړ کښې د يو شعر په حواله کيمياى سعادت د سعادت خان ولد عبدالرحمن خان کارنامه ثابتول .

قصيده برده په رومبي ځل د عبدالقادر خان خټک له خوا پښتو کول روف جان د دريمې درجې شاعر ګڼل او د شاعرانو په ستائنه کښې د مبالغې نه د اجتناب کولو تلقين شوی دی .

"د پښتو ځينو چاپي اثارو ته يوه کتنه" د دغه کتاب هغه ليکنه ده چي د ځينو کتابونو او مقالو د متنو ، معنو او معلوماتو غلطۍ پکښې په نخښه کړې شوي دي - په دغه کتابونو کښې د عبدالحي حبيبي "پښتانه شعراء" د عبدالحليم اثر "پښتو ادب" د خيال بخاري "صرف و نحو" د همېش خليل له خوا " د سعيد ديوان "

د پښتو ټولنې کابل له خوا د دولت لواڼي چاپ شوې ديوان

د دارمستېټر "پښتو خېړنې" د پښتو څېړنو تړیوال سیمینار کښې د مارګن ستېرن له خوا وړاندې شوې مقاله کښې د ځینو دعوو سره اختلاف کړې خاص کر د یکهت په حقله دهغه وینا چې د بېلیو او ځینو نورو په وېناګانو رد کړې ده . او دغه سیمینار چې د څو تنو د کتو وسیله بللې ده .

" د پښتو د چاپي کتابونو سیمینار" تر سرخط لاندې لیکوال دا دغه سیمینار د اکثرو لیکوالو په لیکونو د نورو اعتراضاتو سره د بې ځایه اوږدوالي ، کمزورو ، نګو او بې خونده جملو او نادره تکرارونو تور هم پورې کړې دی .

د راورټي " ګلشن روه " او د پادري هیوز " کلید افغاني " چاپ کول ئې بې ځایه یاد کړي دي . او د بینوا له خوا د حبیبي لیکلي " د افغانستان لنډ تاریخ (فارسي) پښتو ژباړنه چې په دې وجه غیرضروري یاده کړې چې د افغانستان اوسیدونکي په فارسي پوهیږي .

په تحقیق او تالیف کښې غلطي کیږي . د دغه غلطو وجه د محقق او مولف مطالعه هم کېدی شي . ناراستي هم کېدی شي . د کاتب غلطي هم کېدی شي او سهوه هم . د دغه غلطو په نخښه کول او سمول په زړه پورې کار دي ځکه چې یو خو لیکونکي محتاط شي او بل د لوستونکي د معلوماتو اصلاح او شي .

زموږ تذکره نګار په دې زمانه کښې هم غیر محتاط دي او پخپلو لیکونو کښې په روایتي ډول مبالغې کوي . دغسې د ځینو لیکوالو لیکونه په معیاري سیمینارونو کښې د اورولو قابل نه وي او نه دیوې ذمه وارې اداري له اړخه د خورولو جوګه وي . خو هغه لیکونکي د خپلو تعلقاتو

د لې پرې او اثر رسوخ په برکت خپل دغه ليکونه په دغه موقعو اوروي
او د دغه څايونو له اړخه ې چاپ کوي . د دغسې ادبي ځيانتونو او بد دیانتو
مخه نيوې پکار دے .

نو! په دغه حقله د انتهاپسندو ، ذاتياتو او نامناسبه رويو خپل
ځان ساتل پکار دي . بېشکه چې په سميناورنو کښې ورې لوئې مالي او علمي
بد دیانتي کيږي . د لې ړې ساتلے شي خپل ړدي کولے شي ځينې اهل
کسان نظرانداز کولے شي او ځنې نااهل کسان رابللې شي . کېدې شي
چې په ذکر شوي سمينار کښې داسې شوې وي خو ددې نه په وړاندې
سميناورنو کښې به هم دغسې شوې وي او بيا به هم کيږي . که دېښتين صاحب
په هغې لږه خبره کړې وې نو په خبره کښې به توازن پيدا شوې وې .
د دغسې سميناورنو څه مثبت اړخونه هم وي . په دغه حقله د
څه رائے ورکولو په وخت هغه هم په نظر کښې ساتل پکار وي . د غسې
که ماخذونه ې هر څو چاپ شوي دي خو د بنيادي کتابونو په حېثيت
"ګلشن روه" او "کليد افغاني" اهميت لري او خورول ې هيڅ بده خبره
نه ده .

د جېبي د کتاب پښتو کول هم بې ځايه نه دي ځکه چې د پښتو
لوستونکي يواځې په کابل کښې نه اوسي او ددې حقيقت نه هم انکار
نه شي کېدې چې د پښتو نخواه اوسيدونکي په فارسي نه پوهيږي که
د افغانستان په حقله يکلي کتاب په پښتو کښې وي نو د دغه سيمې پښتانه
به هم ترېنه په خلاص مټ استفاده اوکړې شي .

په پښتو کښې د معياري ليکونو رواج کولو په خاطر د غير معياري

لیکو نو غندنه یکار دہ - خو کهٔ رښتین صاحب دخپلې رائے سره بیلګې وړاندې کړې وې نو ډېره به ښهٔ وې - کهٔ صرف د هغه لیکوالو او مقالو نمونه ې اخستې وې نو هم به پوره وې په کوم چې د هغه د غیرمعیاري ګمان دې.

زما په خیال چې د کامل صاحب نه ګیله هم په ځای نهٔ ده ځکه چې هغه پهٔ ذکر شوې لیک کښې د خپلو مشرانو او لرغونو پښتنو لیکوالو د احترام په ځای د تحقیق د روایاتو احترام کړې دې -

خو ! د دغه ځینو وړو وړو تحفظاتو باوجود رښتین صاحب دغه لیکونه د قدر وړ دي ځکه چې لوستونکو ته د څهٔ معلوماتو وړکولو سره سره د خبرې کولو او خبرې پېژندلو هنر هم ښائي.

د عبدالباري اشنا او "حلیمي" ذکر شوي اثار هم دستائنې وړ دي. پهٔ دغه کتابونو کښې د راغلو موضوعاتو او د هغې څېړنو د طریقې سره اختلاف لرونکي بهٔ هم په دې اتفاق لري چې دغه کتابونه پهٔ پښتو ادب کښې د تحقیق بنیاد جوړوي -

د نورو مشرقي ژبو غوندې پهٔ پښتو کښې هم د تحقیق د بنیاد وړومبي تین ے هغه مغربي محققانو او ژبپوهانو ایښې دی ځوک چې پهٔ څهٔ نه څهٔ ډول د پښتو او پښتنو سره اشنا پاتې شوي دي -

پهٔ دوئي کښې مېجر راورټي ، پادري هیوز او دارمسټېټر د ډېرې ستائنې وړ دي -

راورټي د پښتو ژبې ګرامر، لغت او لرغونو پښتنو شاعرانو پهٔ حقله یو شمیر لیکونه کړي دي خو د تحقیق د نظره د هغه " ګلشن روه " خصوصي اهمیت لري -

دغه اثر د لرغونو پښتنو شاعرانو او لیکوالو د کلامونو د نمونو نوندي کولو سره سره د هغوئ د ژوند ژواک په حقله هم معلومات لري .

دغه اثر هغه وخت لیکلې شوې چې کله لیکونکي د ایسټ انډیا کمپنې په فوځ کښې د کپتان په حیثیت ذمه واري ترسره کولې . هغه دغه کتاب په وړومبي ځل په کال ۱۸۶۰ء او دویم ځل په ۱۸۶۷ء کښې په لندن کښې چاپ کړو .

د دغه لیکوالو او اثارو په حقله لیکونکي د کڼ شمېر ادبي ، تاریخي او مذهبي اثارو د نسخو استفاده کړې ده .

اګرچې د دغه لیکونو د پاره لیکونکي اصلي ماخذ ونو ته د رسېدو او د مختلفو اثارو د تقابلي جاج اخستو پوره پوره کوشش کړې دې . خو بیا هم څېنې ادبي او تاریخي تېروتنې لري . ولې ډېر بنیادي او حواله جاتي حیثیت ې نهٔ دې بایئللي . د پښتو ادب د تاریخ لیکونکو ، تذکره نګارو او تحقیق کوونکو د پاره ترننه ورځې بنیادي او اعتباري ماخذ دي . د دغه اهمیت لهٔ کبله د افغانستان علمي او ادبي حلقو یو ځل بیا د زلمي هېوادمل په اهتمام د پوهاند رشاد په سریزه سره خور کړې .

د پښتو ژبې او ادب په حقله د فرانس ژب پوهان او محقق دارمستېټر هم ډېره خواري کړې ده . د هغه څېنې څېړنې سید قاسم رښتیا د فرانسي ژبې نه فارسي ته اړولي دي او د " دارمستېټر پښتو څېړنې " په نوم عبد الحي حبیبي او ښتوا صاحب پښتو ته اړولي دي . د تحقیق په لړ کښې دغه څېړنې هم د بنیادي اهمیت وړ دي .

پادري هیوز د مغرب یو بل داسې عالم ، ژب پوهان او پښتو شناس

دي ـ چې د پښتو ژبې او ادب په حقله یې تالیفات او تصنیفات د قدر وړ ګڼلي شي ـ د پښتو ادب په باره کښې د تحقیق په لړ کښې د دغه "کلید افغاني" باوري بنیادي ماخذ ګڼلي شي ـ د دغه اهمیت له کبله د پښتو څېړنو د نړۍ وال سیمینار په مناسبت سره په افغانستان کښې یو ځل بیا په ډېر اهتمام سره چاپ او خور کړې شو ـ

# ر

د پښتو ادب د مختلفو اصنافو په حقله شوي لیکونو کښې د استاد عبدالحی حبیبي "د پښتو ادب په تاریخ کښې قصیده" (د افغانستان د علومو اکېډیمي) او "پښتو نثر ته کره کتنې" (خوروونه د علومو اکېډیمي) د محمد دین ژواک "د پښتو نثرونه" (خوروونه ـ پښتو ټولنه کابل) د ډاکټر مجاور زیار "پښتو شعر څنګه جوړېږي" (د افغانستان د اطلاعاتو او کلتور د وزارت له خوا) د ګل باچا الفت "څه لیکل یا لیک پوهه" (د ننګرهار د اتحاد مشرقي اداره له خوا) او "غوره نثرونه" (پښتو ټولنه کابل) د سنګروال نیازي "د ډرامې تنقید و تحقیق"؛ د دوست محمد دوست "د اولسي ادب لارې" (پښتو ټولنه) د غوتي خاورې ـ د پښتو شفاهي ادبیات شکل او مضمون (د پښتو ټولنه) د عبدالله بختاني "شعر و ادب" د عبدالرؤف نوشهروي "د پښتو نثر ارتقاء" (د اکاډیمي سائنس اردو پښتو یونیورسټي تعاون) د یادونې وړ اثار دي ـ

د حبیبي صاحب یاد شوي اثار د دغه د استاذي د شان مناسب دي

کۀ په پښتو ادب کښې د قصیدې تاریخ موږ ته نۀ دے خو هغه ې پخپل علم د مړو لو هڅه کړې ده - پۀ پښتو کښې د معیاري نثر رواج کولو د پاره د نثر کره کتنه لازمي ده - د دغه اثر لیکونکي د یوې بنیادي ذمه وارۍ پۀ تر سره کولو کښې لوئې لاس لرلې دي خو پخپله کتنه کښې د کره کتونکي نه زیات محقق ښکاري - د پښتو نثرونو پۀ حقله د ژواک اوګل باچا اُلفت یادښوي لیکونه په زړۀ پورې دي - اګرچې پۀ دغه حقله د نمونو راغونډولو او پۀ هغې حقله د څه ویلو پۀ لړ کښې د نورې خوارۍ ګنجائش هم وو خو شوې خواري هم د ستائنې ده -

د یک د هنر پۀ حقله د الفت یادښوې لیک د هغه د کول او حالاتو پۀ سمون دي او د پښتو نثر د تاریخ پۀ حقله تحقیق کونکي ترې ډېر څۀ زده کولې شي - د پښتو شعر د جوړښت، رنګ او آهنګ پۀ باره کښې د مجبور زیاد یادښوې اثر بنیادي معلومات لري خو د نامانوسو اصطلاحاتو زیاتوالي او مشینی رویے د معلوماتو خوند او تاثر پیکه کړې دي -

د ډرامې پۀ حقله کۀ څۀ لیکل شوي هم دي د سنګروال یادښوي کتاب د پښتو لوستونکو ته پۀ دغه موضوع نوې تازه او خوندور معلومات ورکوي -

د پښتو اولسي ادب پۀ حقله کۀ هر څو ډېر څۀ لیکلی شوي دي او د ادب د دغه برخې څۀ نمونې راغونډې کړې شوي دي خو د غه ادب د لوستې، پېژندنې، راغونډونې او خوندي کونې پۀ لارو چارو او طور طریقو د دوست او غوټې یادښوي لیکونه د هغه بنیادي او اولنو کوششونو برخه ده - کوم چې پۀ اوسني دور کښې د افغانستان د ځینو زلمو لیکونکو

له نوا پیل شوي دي او لا تر اوسه په ابتدائي مرحلو کښې دي .

په دغه اشارو کښې د یادو شوو او تیاکلو لارو چارو سره اختلاف کونکي به هم د دغه زیاد ونو د اهمیت او افادیت څخه انکار اونه کړی شي .

د شعر و ادب په حقله د بختاني نیک د پښتو ادب په زړه پورې خدمت دې څو راتې او روسیه کې روایتي ده . دغه حال د نوشهروي د یاد شوي نیک دې . عبدالرؤف نوشهروي په پښتو کښې د سائنسي مضمونونو په نورولو کښې د یادونې ور خدمات لري . څو د دغه کتاب څلور واړه مقالې کې د پښتو نثر د ارتقاء په حقله هیڅ نوي معلومات نه لري . د نیکوال تیاکلي دورونه هم د پښتو نثر د ارتقائي تاریخ سره سمون نه خوري او په دغه نیکونو کښې د یو دور د نثر ځانګړي خصوصیات ، تحلیل او تجزیه نشته . هرڅوک د خپلې مرضۍ مالک وي . څو سره به داوې چې نیکونکي د دغه موضوع دوئ خپلو استاذانو ته پرېښودې وي . خپل وخت او صلاحیتونه یې خپلې موضوع ته سپارلې وي نو د پښتو نثر په خزانه کښې به د سائنس یو بل شاهکار جمع شوې وي . په پښتو کښې د نثر په ارتقاء او تاریخ نور هم ډېر کسان نیکلې شي څو د سائنسي مضمونونو او موضوعاتو پښتو کولو ذمه واري د هر نیکونکي نه شي تر سره کولې .

د ژبې د لغت ، لهجې او ګرامر په موضوعاتو نیک په خپل ځائې هم یو تحقیقي زیار دې څو دغه دول نیکونه د ادب په نورو څانګو کښې د تحقیق د پاره پکارېږي . زما د معلوماتو تر مخه چې د پښتو ژبې ، لغت ، لهجو او ګرامر په حقله کوم آثار وجود لري ( زما معلومات نیمګړي هم کېدې شي ) په هغې کښې د میجر آر . لیچ ګرامر ( ۱۸۳۹ - کلکته چاپ )

د پروفیسر ډورن (جرمن) ګرامر (۱۸۴۰ - پیټرز برګ چاپ)

د کپیتن واګهن ګرامر (۱۸۵۴ - لندن چاپ)

د میجر جارج هانزي راورټي "اے ګرامر آف پښتو / پشتو (رومبۍ اېډیشن ۱۸۵۵ - کلکته دوهم اېډیشن ۱۸۶۰ - لندن)

د راورټي "پښتو ګلشن آف دي افغانز" (دوهم اېډیشن ۱۸۶۷ - لندن)

د راورټي "اے ډکشنري آف پشتو / پښتو" (دوهم اېډیشن ۱۸۶۷ - کلکته)

د راورټي "د مینول آف پشتو" رومبۍ اېډیشن ۱۸۸۰ دوهم ۱۸۹۰)

د هربرټ پېنل ګرامر چې محمد رحیم الهام "د پښتو ګرامر" په نوم ژباړلی دی -

د جاپاني ژب پوهان نواتا شنجوسن "پښتو جاپاني قاموس"

د نور محمد کندهاري ګرامر "تحفة الامیر" د خیال بخاري "پښتو ژبه" (پښتو اکېډیمي پېښور پوهنتون) د خیال بخاري "صرف ونحو" پښتو (یونیورسټي بک اېجنسي)

د صاحبزاده حمیدالله "د لیکلو او ویلو ژبه" د ګل باچا الفت -

"لیکوالي املاء او انشاء" دانش کتابخانه جنګي محله پېښور)

د پښتو څېړنو د بین المللي مرکز د لسمې کالیزې په مناسبت د سمینار د مقالو مجموعه پښتو څېړنې (دوه جلده) - د افغانستان د علومو د اکاډمي له خوا) د حبیب الله رفیع "ژب پالنه" (دوه ټوکه) د ډاکټر مجور زیار "ګرد ودي څېړنې"

"پښتو پښویه" (کابل پوهنتون خورونه) "پښتو لیکلار" (ننګرهار د پوهنتون خورونه) او "وي پوهنه"

په دغه اثارو کښې د راورټي ليکونه ډېر ياد او مهم دي. د هغه پښتو ګرامر درې سوه درې ۳۷۳ اويه مخونه لري. په دغه مخونو کښې تمامې شوي اصول او يادې شوې قاعدې د پښتو ژبې د مزاج سره سمون خوري. په مقدمه کښې د پښتو ژبې، پښتو ادب او لرغونو پښتنو شاعرانو په حقله علمي او معلوماتي بحث شوې دې.

د پښتو ژبې په حقله د هغه ليکلي کتاب په دغه موضوع ترننه بنيادي کتاب منلې شي. د هغه په ډکشنرۍ کښې نږدې پنځه ويشت زره داسې لغتونه انګريزي ته اړولي شوي چې يا خو پښتو دى او يا په پښتو کښې دخيل دي.

د پښتو محاورو په حقله د هغه ميټول که هر څو وړوکې دي خو د بنيادي او واقعيتي حيثيت له کبله مهم ګڼلي شي.

د الفت په کتاب کښې د املاء انشاء او پښتو ګرامر په حقله د يو څو خبرو نه پس د املاء په حقله د هغه دوو فيصلو بيان دي کومې چې د پښتو ټولنې کابل په خوښه شوې وې، چې ورومبي د پښتو ټولنې په غوښتنه د افغانستان پنځويشت نمائنده پوهانو کړې وه او دويمه هم د دغه ټولنې په غوښتنه او بلنه د بلوچستان، پښتونخوا او افغانستان ليکوال په کال ۱۹۵۸ء کښې کړې وه. د دغه معلوماتو په رڼا کښې دوېمې فيصلې ته مخه په ورومبي فيصله کښې ځينې بدلونونه راوستې شوي دي.

په "پښتو څېړنې" کښې د يو شمېر عالمانو ژبنې او ګرامري ليکونه راغونډ کړې شوي دي. چې پوهاند رشاد ليکنې " د پښتو جاپاني قاموس په باب" تر سرخط لاندې د اسم، فعل، تذکير و تانيث او جمع واحد په حقله د "نوراتا" د قاموس ځينې غلطۍ په نخښه کړې دي.

ما کل سلیمان دوست په خپل لیک کښې د پښتو او واخي ژبو د فعل د جوړښت په څرنګوالي او مقایسه خبره کړې ده -

پوهندوي عبدالروف ښیلواک پکښې د پروفیسر منفرلورنځ هغه مقاله په پښتو ژباړلې ده کومه چې د اینډو اروپائي ژبو تر منځ د پښتو د مقام په باره کښې ده -

په دغه موضوعاتو د ټولو پښتنو او غیر پښتنو خدمات د قدر وړ دي یاد شوي ټول اثار په ذړه پورې دي -

خو : په دغه حقله د داکټر مجاور زیار خواري تر هرچا ډیره ده - زیار باقاعده ژبه پوهان دې - په دغه حقله ې سپیشلائزیشن کړې دی - خو دغه بناغلي یواځې ډاکټریټ نه دې کړې - د دغه سترې علمي ډګرې احترام ې هم زده کړې - بخپله موضوع قابو هم لري او حق ې هم ادا کوي - د هغه د رایو او دوي سره بلا اختلافات کیدې شي خو د هغه د علم او خدماتو انکار نه شي کیدې -

په یاد و شوو موضوعاتو هغه کې شمیره مضمونونه او مقالې لیکلي دي خو یاد شوي اثار ې نمائنده او بشپړ دي -

هغه لهجې ته ګرد و د وائې او ګرد و دي د هغه لهجوي څیړني دي چې د پښتو لویه برخه لري او په دغه کړکیچنه مسئله د علمي بحثونو او تحقیقلارې پرانیزي -

"پښتو پښنویه" او "پښتو لیکلار" په موضوعاتي او معلوماتي لحاظ یو بل ته ورته اثار دي - په دغه اثارو کښې د پښتو ګرامر، اصطلاحاتو او یک دود په حقله بحثونه شوي دي - اګرچې د ځینو خبرو تکرار، ځینو حوالو

( خاصکر پهٔ ډیکلاس کښې ) اوږدوالے او رایو انتها پسندي د بحث رنګ پیکه کوي خواهمیت او افادیت يې نهٔ ورکوي .

" وېي پوهنه " د لغت ډیکلو ، جوړولو ، ساخت او ماهیت د اصولو او طریقو په حقله بنیادي معلومات لري .

پهٔ دې ډیک کښې د موضوع پهٔ مختلفو اړخونو پهٔ حقله د روان بحث پهٔ لړ کښې د مختلفو ژباړلو شوو اثارو ذکر شوې دې لهذا د غیر ضروري تکرار نه د بچ کېدو پهٔ غرض بهٔ یواځې هغه ژباړنے یادول مناسب وي . کومې چې نهٔ وي یادې شوې . چې څهٔ پهٔ دې ډول دي .

اقبال او افغانستان ( ډیک - پروفیسر فتح محمد ملک ) ژباړنه - سید وقار علي شاه کاکاخېل - د حاتم طائي سفرنامه - ژباړنه پروفیسر محمّد نواز طائرؔ .

آزادي ( د کرسټوفر کاډویل د کتاب سټډیز اِن ډِ ډائینګ کلچر د یو ډیک لبرتي ژباړنه ) اولس مل شیراني .

پهٔ افغانستان کښې د ژورنالیزم تاریخچه ( محمد کاظم اهنګ )

ژباړنه - حبیب الله رفیع .

لوړ خیالونه او ژور فکرونه ( د یوشمېر عالمانو د ډیکونو انتخاب او ژباړنه ) ګل باچا الفت .

د کوډکي ادبي ډیکونه ژباړنه - حسن کاکړ

پښتانهٔ او ورونهه ملیتونه ( بور خازو - الماني )

ژباړنه - ډاکټر مجبور ژیاړ

# ز

---

په پښتو کښې به ددا سې چاپ شوې کتابونو شمېر ډېر کم وي چې په هغې به دکتاب د مصنف/مولف نه سېوا دبل چا یېک نهٔ وي .

د ډېرو شاعرانو او مولفینو په دیوانونو او تالیفونو د ورستې زمانې لیکوالو مقدمې لیکلې دي . په دغه مقدمو کښې د یادو شوو شاعرانو او عالمانو د ژوند او فن مسلئ څېړلې شوې وي .

دنوې زمانې د لیکوالو په کتابونو د سریزو ، مقدمو ، تبصرو ، تذکرو او یادونو په ډول دنوې وخت مشهورو عالمانو ، شاعرانو او لیکوالانو لیکونه کړې وي .

دکلاسیکي استاذانو په شعري او نثري اثارو شوې لیکونه اکثر د مقدمو په شکل وي . په دغه مقدمو کښې دهغوئ په ژوند او فن خبره شوې وي .

په دغه مقدمه بازی کښې ګڼو کسانو برخه اخستې ده .

خو ! په دغه مېدان کښې ډېرو کمو کسانو کامیابي موندې ده . ځکه چې دغه یو باقاعده تحقیقي زیار دې . دغه زیار په ځائې کول او ترسره کول دهر چا د وس خبره نهٔ ده . ددغه دورې هر شاعر د اوچتې درجې شاعر بلل او د هغه کلام ته ساده ، ساهو ، روان او مېټین ویل خو داکثرو لیکوالو عادت جوړ شوې دې . ولې ! کله کله یې د ژوند سره هم توقې اوکړې . هسې خو دغه توقې ډېرو کسانو کړې دي . خو ! زهٔ د نمونې په ډول

د عالم فاضل ښاغلي محمد عارف غروال هغه توقه یادوم کومه چې هغه د دغسې یو شاعر "حبیب الله سره" کړې ده. غروال د "حبیب الله دیوان" د سریزې، سمون او فهرستونو ذمه واري تر سره کړې ده.

هغه په خپل یوه کښې دغه لرغوني شاعر د خیبر تر اټکه په لتوکښې دیو ځائې یاد کړې او د خپلې خبرې په دلیل کښې د هغه وینه را نقل کړې ده. ع

چې ته نه ئې په ماغم شي د خيبر تر اټکه

او هغه ته ئې د دولسمې هجرې پېړۍ شاعر ویلې دې. یوه پېړۍ ډېر لوئې وخت دې. دیو سړي د پاره دومره لوئې وخت یادول هیڅ مناسب خبره نه ده.

دغسې خیبر او اټک د پښتونخوا دوه تاریخي ځایونه دي. د دغه ځایونو تر منځه لویه علاقه پرته ده. یو سړي د دومره لوئې علاقې یادول د هیڅ تحقیق د هیڅ طریقې سره سمون نه خوري او بیا په دغسې بنیاد ولاړ تحقیق هم د باور جوګه نه وي.

دیو بل لرغوني شاعر علي خان دیو مشهور غزل یوه مصرعه څه داسې ده. ع

"یوه سترګه مې باره شي بله کرمه"

نو دا معلومه خبره ده چې علي خان د هغه لتو نه دې. کوم چې د باړې او کرمې تر منځه دي.

د حبیب الله دغه مصرعه د رحمٰن بابا د دې مصرعې تاثر هم کېدې شي.

" د خیبره تر اټکه الغیاث "

وړاندې ييکي چې د پخوانو شاعرانو د کلام ستره برخه وعظ ونصيحت ته وقف ده - حالانکې دغه بناغلي به لوستي دي چې د نامتو لرغونو شاعرانو عبدالحميد ماشوال، علي خان، کاظم خان شيدا او کامګار خټک په شاعرۍ کښې ډېره لږه برخه وعظ ونصيحت ته وقف کړې شوې ده -

بناغلي غروال د جيب الله د کلام او شاعرانه صلاحيت ستائنلو په لړ کښې دغه په شاعرۍ کښې د سادګۍ، روانۍ او سلاست د ستائنلو سره سره دغه په کلام کښې د مورنۍ ژبې پښتو سره په دري او اردو ژبه ييکلي شعرونه هم ستائلي دي - او داسې حوالې يې هم راوړي دي چې شاعر په پښتو، دري او اردو ژبه ګډ شعرونه ويلي دي - د مورنۍ ژبې سره په بله ژبه شاعرۍ کول يې ګران کار ياد کړې او دغه يې د دې قوم ځانګړې استعداد بللې دي -

اول خو د لرغونو پښتنو شاعرانو ديوانونو کښې د پښتو او نورو ژبو ګډ شعرونه ډېر کم شمېر لري - بيا دغه رنګ شعرونه بنه فني معيار هم نه لري حتیٰ چې د جيب الله رانقل کړې شوي شعرونه هم د فني لحاظه ډېر کمزوري دي بلکې دغه ځانګړې دري او اردو شعرونه هم د ډېرې ستائنې وړ نه دي -

او بله دا چې د پښتنو شاعرانو ځانګړې استعداد نه دي - د نورو ژبو خاصکر هندي او اردو شاعرانو هم دغسې کړي دي بلکې د اردو مشهور لرغوني شاعر " انشاء الله خان انشاء" خو د اردو سره سره په څو نورو ژبو کښې شاعري کړې ده -

د نوي وخت د شاعرانو او ليکوالو په اشارو د نوې زمانې اکثر

ټیکونه زمونږ د اولسي شاعرۍ یو ډېر زوړ صنف ستاینې ته ډېر نـږدې ښکاري . که په ستاینه کښې هر " هېرا غېرا نتوخېرا " " دچندې لخته تاووي غواړې کوېږدنه " نو د مخصوص ماحول ، مزاج اومعیار له کبله د اورېدونکي طبیعت نهٔ درنوي .

ولې په کتابونو کښې غېر ضروري اوغېر معیاري صفتونه لوستونکي ته ذرهٔ خرابوي - په دغه حقله اکثر ټیکونکو د صفت دغه لار اختیار کړې ده خو یو شمېر ټیکونکي داسې هم دي چې ټیکې نو معقول او محتاط ټیکې لکه

" ادب د تیوري اساسونه " ( دوست شنواري ) په حقله د سر محقق صدیق روهي ټیکنه - " دکره کتنې دولونه " ( زلمي هېوادمل ) په حقله د بریالي باجوړي ټیکنه - د عبدالباري جهاني په کتاب " پائیکوب " د ډاکټر اسرار ټیکنه -

په دغه کتاب درحمت شاه سائل ټیک هم معیاري دې خو د تیارهٔ صباوون / صبا کاذب پهٔ اِصطلاح بې ځایه او بې معنې بحث پیکه دې .

دغسې د امیر رزاق ساحل پهٔ شعري مجموعه " دخیالونو تصویرونه " هم سائل صاحب د خپلو خیالاتو اظهار کړې دې . د دغه اظهار څهٔ برخه کهٔ ټیکوال د خپل جذباتي طبیعت په دریاب نهٔ وې لاهو کړې نو پهٔ مجموعي دول به ډېر معقول ټیک وې . دغه یاده شوې برخه هغه ده په کومه کښې چې هغه پهٔ ټوله پښتونخوا کښې د ساحل د شاعرۍ دخور ډېر د قوي امکان په طمع د هغه شاعرۍ د قام د ټولو زخمونو علاج او هرې مسئلې حل ګڼلې دے .

د سائل غوندې هوښیار سړي سره د شاعرۍ په حقله دغسې غېر معقوله جذباتي رویه مناسب نهٔ ښکاري . شاید چې د شاعرۍ لوستونکي

په دې کښې اختلاف اونهٔ لري . چې د هیڅ یوې ژبې دهیڅ یو شاعـر
شاعري هم د قوم د هر زخم څرپکه او هرې مسئلې حل نهٔ وي . هم دغـه
جذباتیت اکرام الله گران هغه وخت څپه کړې دې کله چې هغهٔ د اباسین یوسفزي
پهٔ شعري مجموعه "غورزنګونه" خپله رائے ورکړې ده - ګران کهٔ هر څو
معقول او متوازن انسان دې خو په جذباتو کښې د غه دواړه صفات د لاسه
ورکړې دې . د جذباتو پهٔ ترنګ کښې ې اباسین د ساتل نه پس د ملاکنډ
دوهم لوئ شاعر یاد کړې دې . یعنې کهٔ اباسین یو ځل بل واخست نـو د
ملاکنډ د نمبر ون رحمت شاه ساتل برابر بهٔ شي : او ګران بـه د صوبې
نمبر ون وي .

اول خو داچې ساتل د ملاکنـډ نـه د ټولې پښتونخوا شاعـر دې . پهٔ
ن وخت کښې د پښتنو شاعرانو پـه وړومبي صف کښې ولاړ دې او پـهٔ دغـه
صف کښې هم کهٔ د چا نه قدم وړاندې نهٔ وي نو وروستو بـهٔ نهٔ وي . بله
داچې د ملاکنـډ د شاعرانو پهٔ قطار کښې هم د ساتل او اباسین ترمنځـه
عبدالحکیم قادري ، محمد اسلام ارماني ، امیر قاسم هاشمي ، ډاکټر خالق زیار
محمد طاهر طاهر او نور ولاړ دي خو بیا هم اباسین ډېر ښهٔ شاعر دې او زلمې
دې کهٔ د تخلیق چینې ې تاندې پاتې شوې . نو نورې کامیابۍ بهٔ ومومي . خو
هغه د یوې علاقې پورې محدودول یا د چا سره پهٔ قطارونو کښې اودرول
مناسب نهٔ دي .

د پښتو ادب د طالب علم پهٔ حیثیت زما د نظره پهٔ سلونو دغسې لیکونه
تېر شوي خو ما د بحث دپاره د نمونې پهٔ ډول پهٔ څو نما ئنده کتابونو د
مشهورو لیکونکو لیکونه پهٔ دې غرض غوره کړل چې د صفت او ستائنې

دغه زور او روایت ډېر زورآور هم غوره وېلی دي . دچه باتو په ترڼک کښې
دراڅئ پر ځای فتوی ورکړي دي او فتوې هم دخپلی فرقې د نظره . چونکې
دد غسې مشهورو کسانو راتئ د لوستونکو په رويو جوړولو کښې لوئې لاس لري
لهذا نظرالدن کول ئې مناسب نهٔ وي .

مطلب دا نهٔ دی چې کښې څوک یخپلو لیکونو کښې د کتابونو کمزوري
ارخونه رابرسېره کړي یا دلیکوالو سپکاوی اوکړي . دغسې کول د موضوع تقاضا
هم نهٔ ده او دکتاب په مارکیټ هم خراب اثر غورزوي .

خو : دغسې لیکونه په دې غرض کیږي چې داداب په تاریخ کښې ددغه
کتاب په مقام او خپل دور دادبی رويو په نوعیت خبرې اوشي . دکتاب
هغه ارخونه رابرسېره کړې شي چې کوموته د لوستونکي نظر په اسانه نهٔ شي
رسيدے . دغسې دغه لیکونه د لوستونکي دمعلوماتو زياتولو اودهغائې په
غرض کولې شي . دهغهٔ دتېريستو او تيندنک کولو دپاره نهٔ دي .

هسې خو په پښتو مجلو او ورځ پاڼو خاصکر "وږمه" "کابل"
"جرس" "پښتو" "تماس" "ليکوال" "وحدت" "اوهېواد" کښې وخت په وخت
تنقیدي تبصرې چاپ کیږي . اګرچې ددغه لیکونو اکثریتي برخه
سرسري تبصرې او تذکرې وي یا د ذاتونو او شخصیتونو د درناوي سپکاوي
دپاره په مبالغاتي رنګ کښې وي خو کله کله څهٔ معیاري برخې هم ولري .
دغه برخې د قدر وړ او دستاښې جوګه دي . ددغه څو معیاري لیکونو په
نورولو دغه مجلې او ورځپاڼې په پښتو ادب کښې د تنقید خوندرنګ زياتوي .

په پښتو کښې دتنقید په حمله د وړاندې ياد شوي ( دوې يک په
رومبي برخه کښې ) اشارو نه علاوه په کتابي ډول چاپ شوي اثارو کښې

د ارباب سکندرخان خلیل "ژور فکرونه" دپښتو رچاپ)

دگل باچا الفت "د زړه وینا" او ادبي بحثونه" دپښتو ټولنې

کابل خورونه) نوي سبک او نوي ادب د کابل دمطبوعاتو دریاست خورونه)

دمیان شرف "دپښتو عروض" د دپښتو ټولنې کابل خورونه) د

محمدصدیق روهي - ادبي څېړنې ر ننګرهار د پوهنتون خورونه) د

عبدالروف بېنوا "ادبي فنون" د دپښتو ټولنې کابل خورونه). داصغرلاله

"ژوند اوادب" ر د مکتبه افکارنو پېښور خورونه) د زلمي هېوادمل، د

"کره کتنې دولونه" ر د افغانستان د لیکوالو د انجمن خورونه) د دوست

شینواري د ادب د تیوري اساسونه ر د دولتي مطبوعې کابل چاپ) د

اکبر کرګر "څو ادبي یادونې" ر د افغانستان د لیکوالو د انجمن خورونه)

د محمد رحیم الهام" ادبي مسالی ر د افغانستان د لیکوالو د انجمن خورونه)

د ډاکټر اسرار "د تکل په تکل کښې" د اولسي ادبي ټولنې مردان خورونه)

په یاد شوي اثارو کښې د الفت صاحب درې واړه کتابونه، د میان شرف

کتاب او د مقالو مجموعه "شعر وادب" د ځینو تحقیقي نمونو لرلو باوجود

په مجموعي ډول د تنقید په رنګ کښې رنګ دي - د دغه رنګ په برکت

دغه کتابونه په هغه اثارو کښې شمېرلے شي کوم چې په پښتو ادب کښې

د تنقیدي رجحان او رویو جوړولو کښې لاس لري.

د اصغر لاله یاد شوي ییک د ظهیر کاشمیري د "ادب کے مادی نظریے"

غونډې د نظرې په رنګ کښې لوشت دې - د ادب او نظرے ترمنځه

تړون او تعلق به خبره ده خو په دغه ییک کښې نظرې د ادب میدان

کتهلي دې.

د بېنوا صاحب کتاب د معاني، بیان، بدیع، قافیې عروضو او نورو دغسې موضوعاتو په حقله معلومات لري - دغه معلومات روایتي دي نو په شعر پوهنه او خاصکر د کلاسیکي شاعري په تنقیدي جاج اخستو کښې ترې په زړه پورې استفاده کېدې شي.

د روهي څېړنې د (الف) ادبي تیوري (ب) ادبي کره کتنه - (ج) ادبي میتودونه - (د) ادبي تاریخ څلور برخې لري - اګرچې په دې کښې یوه برخه د تنقید په حقله ده - خو دغه نورې برخې هم تنقید ته ورته بحثونه لري - دغه بحثونه د لوستونکو ادبي شعور ته وده ورکوي او د تنقید طالبعلمان په دې پوهوي - چې د ادب دنیا بې نظرې او بې طریقې نه ده - بلکې په دغه حقله خبره کول د سړي نه ډېره لوستې، پوهې، سوچ فکر، انداز او طریقې تقاضا کوي -

د ارباب سکندر "ژورفکرونه" که د پښتو نقه بندوخندمتکارو د یادجوګه ونه ګڼل خو په ژوروالي یې څه اثر نه دې پرېوتې - دغه کتاب د زړه چې کومه نسخه لولم) د چاپ ځاے او نېټه نه لري - خو د چاپ د دول نه ښکاري چې د دغه د نورو کتابونو غوندې په پېښور کښې چاپ شوې -

د بیک ژبه یې هغسې روانه او اسانه نه ده کومه چې د دغه د نورو لیکونو ده. کېدې شي چې دا د دغه رومبې لیک وي او دا هم کېدې شي چې په دې موضوع یې دغه قدرت نه لرو کوم چې د فلسفې او اقتصاد په موضوع لرو -

خو! د ژبې د کړکېچ باوجود دغه کتاب د دغه ټولو کتابونو نه په

علمي او معلوماتي دول درونډ دي کوم چې په کوزه پښتونخوا کښې تراوسه پورې د ادبي تنقيد په حقله ليکلې شوي او ياد شوي دي ۔

د پښتو ايم ۔ اے ، ايم فل او پي ۔ ايچ ۔ ډي د طالبعلمانو د پاره په پښتو کښې د تنقيدي ادب د کمي باوجود دغه کتاب په يو کورس کښې نهٔ دې شامل کړې شوې او کورسونه خو پرېږده چې د تنقيدي کتابونو په شمېر کښې نهٔ دې راغلې حتّیٰ چې د افغانستان هغه ليکونکو ې هم پخپلو اشارو کښې ذکر نهٔ دې کړې ځوک چې د تنقيد کتابونه په ګوتو شميري.

دغه کتاب بيخي غېرسياسي او خالص ادبي رنګ لري ۔

د ادبي تنقيد د تعريف او تاريخ په حقله معلومات لري ۔ اګرچې ژبه ې ولاړه او ځينې جملې مبهمې دي ۔

د دغه کتاب په پيژندګلو کښې ليکونکي ځل ځل قام ته بيا بيا د تحقيق او تنقيد اهميت په ګوته کړې دې ۔

په دوېم باب کښې يې د ادب پيژندګلو کړې ده او شاعرۍ ته يې د ادب روح وئيلې دې ۔ [39]

د ارسطو کتاب الشعر“ تر سرخط لاندې يې د پويټکس د پوره پيژندګلو سره سره د ارسطو او افلاطون د فکري اختلاف تفصيلي ذکر کړې دې ۔

د ارسطو د دغه اثر په حقله وائي چې د هغه (ارسطو) د نورو تړلاسه شوي ځينو نو غوندې د هغه دغه شعرونه هم مونږ ته د يو کتاب په شکل کښې ترکيب شوي نهٔ دي تړلاسه شوي ۔

د ارسطو نه پس تر سرخط لاندې د ۶۵ ق م شاعر او نقاد هورېس

یونانی یادوي[۱] ـ او دغه تنقیدي شاهکار دتنقید په موضوع دیو نظم په سیوا هیڅ نه مني ـ ورپسې دانتې او فلیپ سډني یادوي او بیالانجائنس تنقیدي نیک "آن دی سبلائم" یوه خالصه تنقیدي کارنامه یادوي څو دډیرو دوستو چاپ کیدو په وجه یې دتنقید په تاریخ کښې اهمیت بالکل نوی یادوي[۲] ـ

ددې نه پس د"بن جانسن" "درائي ډن" "پوپ" "ورډزورتهه" "لیسنګ" "کولرج" "هیزلټ" منزاني او نورو دخدماتو لنډ غونډې ذکر کوي ـ

زه په یوناني نه پوهیږم خو ما چې دارسطو دپوئټکس کومه انګریزي او پښتو ژباړې لوستي دي او یا مې په دغه حقله کوم نیکونه دنظره تېر شوي دي نو دهغې مطابق دغه نیک دشاعرۍ په حقله په نثر کښې لیکلي شوې دي ـ او ارباب صاحب دې ته په شعرونو ویلو تېروتې دې ـ

زما په خیال هوریس یوناني ګڼل او دهغه شاهکار دتنقید کارنامه نه منل هم دارباب صاحب تېروتنه ده ـ کیدې شي چې دغه سهوا شوي وي ـ ځکه چې وړاندې هغه پخپله هم په هوریس دیونان اثرات دروم دکلتور دتاریخي حالت غوښتنه یادوي[۳] ـ او دتنقید په تاریخ کښې هغه دارسطو نه پس دوېم لوی مفکر مني[۴] ـ دتنقید په تاریخ کښې دلونجائینس دنیک اهمیت هم نوې نه دې ـ ځکه چې دهغه دغه اثر په فرانسیسي ژبه کښې په سوونو کاله وړاندې ژباړلې شوې او خور شوې دې. دغه ژباړې دیورپ او په خصوصي ډول دفرانسي دتنقید استاذان ډیر

زیات متاثره کړي دي .

دغه لابخائنس کۀ د رومبۍ پیړۍ اوسیدونکي دي اوکه د دریمې پیړۍ خو په دوارو حالتونوکښې د دیارلسمې پیړۍ د "دانتے" اوشپاړسمې پیړۍ د "سرفلپ سډنی" نه ډیر وړاندې تېرشوي دي اودنقاد په حیثیت هم ددغه دوارو نه ډیر لوئ دي ځکه مناسب نۀ ښکاري چې د هغه ذکر ددغه دواړو نه روستو وي .

خو ددغه ټولو تېروتنو باوجود هم دتنقید په موضوع د ارباب صاحب دغه کتاب دهغه ډیرو کتابونو نه غوره اومهم دي په کوموکښې چې دتنقید اوټولو ادبي اصنافو تعریفونه رانقل کړي شوي وي اوهغه هم اکثر دنقل دنقل نقل وي .

د پښتو ادب د یوطالب علم په حیثیت ماته دعلم اوانصاف په اصولو دا مناسب نۀ ښکاري چې پۀ پښتوکښې دتنقید پۀ حقله د شوي لیکونو اواشارو په ذکرکښې "ژورفکرونه" دبنیادي اثر پۀ توګه یاد نۀ شي .

دمتن شړیو اوخطي نسخو پۀ حقله ژلمي هیوادمل پۀ پښتوکښې ډیرڅۀ کړي دي اوچې ژلمی وي نو امکان دې چې نورخدمات بۀ هم ترسره کړي . خو دتنقید پۀ حقله ئې یاد شوې لیک د ستائنې وړ دې .

پۀ دغه کتاب کښې "پښتو اوادبي کره کتنه" دهغه ځانګړې لیک دې . نورې ئې د اردو د نامتو لیکوالو ژباړې کړي دي چې پۀ هغې کښې د ناظر کاکوړ دي "تنقید اوتنقیدي شعور" دپروفیسر سلیم اختر

"تنقيدي دبستان" د سيد مجتبى حسين "نقاد" او د سماجي تنقيد نومې کتاب د يو بيک "عملي تنقيد" لنډيز او ژباړنې دي. دغه ژباړنې ضروري او په زړه پورې دي. د لنډون او روانيم باوجود د عبارتونو مطلب او مفهوم په ځای دي.

نو! د ځانګړي بيک سړې هغه خواري نه ده کړې د کومې په اهميت چې زلمي هېواد مل پوهيږي. په دغه بيک کښې د پښتنو شاعرانو او ليکوالو د وېناګانو او بيانونو د نقلونو او بېلګو د نيمګړتياګانو سره سره د ليکوال د خپلې تجزيې او تحليل کمي هم راغلې ده.

په تنقيد کښې د تحقيق په اهميت هېوادمل خبر دي خو "تنقيد" د قلندر مومند ځانګړي کارنامه يادوي. دغه يوه باقاعده تېروتنه ده ځکه چې هم د دغه ليکوال د يو بل بيک "نظميات" سره ترجمه ليکي. خو "تنقيد" سره د ترجمې ليکلو ضرورت نه محسوسوي. په دغه حقله د افغانستان نور ليکونکي هم تېروتي دي. بناغلي حبيب الله رفيع په خپل اثر "د پښتو کتاب ښود" (افغانستان چاپ) کښې هم د دغه اثر سره ترجمه نه ده ليکلې حالانکې هم په دغه اثر کښې بناغلي ليکوال د بلې هرې ترجمې سره ترجمه ليکلې ده. په دغه کتاب علامه عبدالحى حبيبي لنډه ليکنه هم کړې ده. خو دغه تېروتنه يې نه ده په نخښنه کړې. يادشوي کسان ټول پښتانه عالمان دي او تحقيق په لړ کښې د ستاينې ور خدمات لري نو کېدې شي دغه وړوکي غونډې کتاب يې په پوره ډول نه وي لوستې او قلندر مومند د خپل دغه اثر په آخري مخونو وضاحت کړې دې چې دا ما د خپلو شاګردانو د زده کړې اسانونو د پاره د هرسن د مشهور تنقيدي اثر

........ ديو باب ترجمه کړې ده چې دځينو دوستانو په خواست يې چاپ کړه دلته دهېوادمل يوه بله سهواً تېروتنه هم په نخينه کول ضروري گڼم .

اوهغه داچې د عقاب خټک د "خوشحال نا يې" څای چې د جېبي صاحب اثر رد پښتو نثر ته کړه کتنې) ته ورکړې دی کوم چې هم دهېوادمل په زيار د افغانستان په دولتي مطبوعه کښې چاپ شوی دی .

د هغه خواري دکمي باوجود دکوږي طمع چې دهېوادمل نه کيږي . دغه ليک دعلمي تنقيد دځهٔ نمونو سره سره د ساهو تنقيد دپاره په زرهٔ پورې تجويزونه لري .

ددوست شنواري اکبر کرکر اورحيم الهام د يادو شوو اثارو دځانگړې پېژندگلو باوجود به دځينو شريکو صفاتو لهٔ کبله دغير ضروري تکرار نه دډېرکېدو په خاطر دهغې شريک جاج مناسب وي . دوست شنواري په خپل دغه کتاب کښې د مختلفو سرخطونو لاندې مختلف ادبي موضوعات، رويې اورجحانات معرفي کړي دي . دمعلوماتو راغونډولو ، ترتيبولو اوورلاندې کولو پهٔ لړکښې يې په زرهٔ پورې خواري کړې ده د " ادب اوادبيات " د سرخط لاندې يې په دغه حقله دکېن شمېره عالمانو وېناگانې رانقل کړي دي . داادب پهٔ تولنيزه بڼه اوادبي تيورې يې خبره کړې ده . دادبي تنقيد دموضوع اواهميت پهٔ حقله يې وېنا کړې ده .

دمغربي ادب تعريف يې کړي دی . داادب او انسان پهٔ تعلق يې ويل کړي دي . د مختلفو ادبي مسئلو ، موضوعاتو اومکتبونو لنډه پېژندگلو کړې ده . آزاد شعر ، سپين شعر ، پښتو شعر ، اولسي شعرونه اوسندرې يې يادې کړي دي . د "پښتو ليکلي ادب " پهٔ حواله يې دمکتبونو ، سبکونو او

میتودونو یادونه کړې ده . "د پښتو اوسنې نظم ته یوه کتنه" کې کړې ده . په پښتو شعر کښې سوسالستي ریالیزم ته یادکړې دې .

د افضل ټکور په اهتمام خور شوې د اکبرکرکر کتاب د هغه د مقالو او مضمونونو مجموعه ده . په دغه لیکونو کښې د نامتو جرمن شاعر او ډرامه نګار بریښت د هنر کاله او د هغه د مشهورې ډرامې "د کلیله او دمنه" ژوند د چلي د منلي شاعر "پابلو نرودا" د پاکستان د انقلابي شاعر فیض احمد فیض او د مشهور لیکوال رومن رولان د ژوند او اثارو د پېژندګلو سره سره د پښتو شعر و ادب په حقله هم څه خبرې شوې دي . لکه " د لرې پښتونخوا په ادبیاتو کښې د سترسوسالستي انقلاب اغېزه "

د اولسي شاعرۍ په خصوصي ډول د ټپې په حقله " د پرګنو د روان ننداره" د موسیقي په حقله " د موسیقي په هنر څو یادونې " د غني خان په حقله د خپل تالیف " غني د شګو په محل کښې " د راغلو کمو د پوره کېدو په خاطر " غني د شګو په محل کښې د اثر په باب څو نور یادښتونه ":

" د نوي یا آزاد شعر په باب څو خبرې " د پښتو شعر و ادب او پښتو لیکوالو په حقله څه معلومات لري .

د طاهر په اهتمام خور شوې د محمد رحیم الهام یادښتونه اتلس اووه مقالې لري چې ټولې د مولف خپلې لیکلې او دوه د نورو ژباړلې شوې دي.

په "ادبپوهنه" کښې د ادب د کلمې او ادبي اثارو د جوړښت او اهمیت په حقله د یادونې وړ معلومات راغونډ کړې شوي دي .

" د فرهنګ په عمومي جوړښت کښې د ادبپوهنې دریځ " تر سرخط لاندې

د روسي ژبې نه هغه مصاحبه ژباړلې ده کومه چې دکتور کاندیدي د لیدیا کینز یورگ سره کړې ده .

په "ادبي کره کتنه" کښې دکره کتنې او ادبیاتو په حقله په زړه پورې بحث شوې دې . دکره کتنې موضوع او میدان يې دبحث لاندې راوستي دي .

داشرف خان هجري تخیل او "د پښتو خزانې په سبک یو تحلیلي نظر" دذکرشوي کتاب هغه لیکونه دي چې د پښتو کلاسیکي ادب او ځینو اثارو په حقله معلومات لري " زمونږ د دوران د ادبي کره کتنې مالی". یوه روانه او اسانه ژباړنه ده .

هسې خو دغه درې واړه اثارو د پښتو ادب نثري برخې خاصکر تنقید ته په زړه پورې درناوي بخښلي .

خو! د دوست شنواري اثر ( دادب د پېژندنې اساسونه ) په موضوعاتي او معلوماتي لحاظ ډېر درونه دي خو ددغه درونه والي با وجود هغه کمي او کمزوري لري کومې چې نور دوه اثار لري . لکه داچې دمترقي ادبیاتو او ادیبانو په معرفي کولو کښې د غېر ضروري انتها پسندۍ ښکار شوي دي .

د دوست په خیال

" مترقي ادب د اولس دکلتور د بنسټ ایښوونکي د اخلاقو سموونکي او هنداره ، په اولس کښې معقول نهضت لار ښوونکي او د نامعقولو سره د مبارزې اغېزناکه وسیله ده . "

دالهام د نظره " غېر مترقي لیکوال د خپل تولیزلید دود په برخه

کښې د ماشوم په شان دي . او د ابتدائې فکرونو ولرلو له امله د ټولنيز ژوند د قوانينو په تحليل کښې سترې غلطۍ کوي او د نوي جوړونې د اساساتو په پوهېدو کښې پاتې وي ."

اکبرکو "د موسيقۍ په هنر ځو يادونې" تر سرخط لاندې ليک کښې فنکارانو ته د کوندې کېدو او د انقلاب د سپاهيانو جوړېدو تلقين کوي. د ټولنيز ژوند په حرکت او بدلون کښې د مترقي ادب اهميت په خپل ځای دي . خو که د ومره بنيادي او هر اړخيزه ذمه واري ورو سپارو . د کومو د پاره چې دوست وسېلي دي نو بيا خو به په ټولنه کښې د سياسي گوند جوړولو کوم ضرورت نه وي . لوی مترقي اديب به لوی ليډر او غټه ادبي جرگه به لويه سياسي پارټي وي . د غسې الهام خپله خبره کړې ده او که د بل چا وينا يې رانقل کړې ده . خو د مترقي نقطه نظر لرلو با وجود زه د دغه فتوې سره اتفاق نه لرم . د ارسطو او لا بجانس نه واخله تر ټالستائي او ټي . ايس . ايليټ پورې او د ابوالکلام آزاد نه تر حسن عسکري ، پروفيسر کليم احمد ، عبدالحي حبيبي ، حمزه شنواري او غني خان پورې يو هم په هغه معنو کښې مترقي نه دې کومه معنا چې د الهام د ذکر شوي اثر نه څرگندېږي . خو دغه ټول ليکوال پخپلو ليکونو کښې د ټولنيز ليد دود په حوالو بالغان دي . د ټولنيز ژوند د قوانينو په تحليل کښې يې د ډېرو مترقي ليکوالو په مقابله کښې د غلطيو شمېر کم دې .

د ليکوالو او فنکارانو د کوندي کولو او د هغوئې نه د انقلاب د سپاهيانو جوړولو رويه د ستالن په امر نه دوره کښې د مترقي ليکوالو

یوې برخې خپله کړې وه څو په ټوله دنیا کښې مترقي لیکوالو ددې خلاف بغاوت اوکړو - ځکه چې د تخلیقي فنکارانو فطري صلاحیتونو او مترقي رویو ته خطره وه څو ښکاري چې "کرګس" د خپل اثر ترتیبولو تر وخته د روسي او نورو مشرقي لیکوالو ددغه نوې خپلې کړې رویې په حقله معلومات نه لرل -

مترقي ادب ټول عمر د انساني ټولنو په وده کښې بنیادي کـــردار ادا کړې دې څو بې ځایه او منفي انتها پسندي همیشه مترقي ادب تاواني کړې دې -

د ټولنیزو عملونو په توګه ادب او سیاست همیشه یو بل متاثره کړې دې - د ادب په مملکت کښې د سیاست په ذکر پابندي لګول د ادب بې ادبي ده -

خو ادب د سیاسي مصلحتونو په ځولۍ کښې رانغاړل ادب دښمني ده - ولې د خپلو ګټو وټو خوندي کولو او خپلو نوکرو پخولو په خاطر ځینو لیکوالو دغه دواړه عملونه کړې دي -

د تورخم د زنځیر نه دې غاړې ته ځینو لیکوالو په سیاسي ذکر د پابندۍ تائید کړې دې او بلې غاړې ته او سید ونکو اکثرو لیکوالو د ادب په ژبه سیاسي تبلیغ کړې دې - او چې چا په دغه حقله د توازن نـه کار اخستې نو هغه په دواړو غاړو خوار دې - د افغانستان دکښ شمېره لیکونکو په لیکونو کښې سرکاري سیاسي تبلیغات راغلي دي څو په دغه درې واړو اثارو کښې ډېره غلبه مونده ده -

دوست په خپل یاد شوي اثر کښې د انقلابي نظم په کتنه کښې د

ثور د انقلاب نه پس د ملک وسائل د غټو خېټو بډايانو په ځای د
خوارانو غريبانو ژوند ته سپارلي کېږي او هغوی د انقلابي شعرونو مرکز
کېږي ځای شوی يادوي .

"د نوی دوری" تر سرخط لاندې غير ضروري او سپور سياسي بحث
کوي - دغه حال " د ادب نوي پړاو " کېږي دي - او هم دغه ته يې
" په پښتو ادب کېږي د سوسيالي ريالېزم پيدا ښت " سره کړې دی .
دغه رنګ په نورو څو ځايو کېږي د خپلو نظرياتو څرګندونه څه داسې
کوي .

" د مارکس او انګلس نه پس د اکتوبر د ستر انقلاب ستر
لارښود لېنن د ادب تيوري په خپلو نا بغانه نظرياتو بډايه
کړه .[٥١]"

" نمونې د ټولنې زيارکښان چې د انقلاب نه د مخه د ټولنې
د داسې عناصرو په توګه ژوند کاوه چې له نظره لويدلي
او غټو خېټو بډايانو د استثمار او ملنډو مورد وو . د انقلاب
په راتګ سره د ټولنې د حقيقي زامنو په توګه او پېژندل
شول .[٥١]"

" د ثور د پرتمين انقلاب نه د مخه او وروسته د
پښتو ادب د نورو انواعو په څير د پښتو نظم د ميتود په
لحاظ سره ډير توپير لري[٥٢] ."

" د انقلاب نه د مخه په افغاني فيودالي ټولنه کېږي
اجتماعي بې عدالتي ، استثمار ، سود ، رشوت ، د خپلواکو

انسانانو د خوښو او لوښو) پلورل ، بې سوادي او نور مفاسد
دستر کور او خواخوږي هنرمند له پاره د غم ورنه وو[۵۳] ."

اکبر کوکو د چنل اثر په څو یکونو "د لرې پښتونخوا په ادیبانو کښې دستر سوسالستي انقلاب اغېزه" "د انقلاب تر برې وروسته د پښتو کیسو د محتوي په باب څفلنده نظر". "د موسیقۍ د هنر څو یادونې" کښې هم د غني غیر ضروري اوږدې سیاسي تبصرې او تبلیغات کړي دي .

د غني خان په حقله یادونو کښې ې د اوږدې سیاسي تبصرې نه پس فیوډال غني د فیوډالي مناسباتو وړاندې کرکه ښکاره کوونکې یاد کړې او د بېلګو په ډول ې د شاعر هغه شعرونه رانقل کړي دي کوم چې نه یوازې د هغه د شاعرۍ کمزورې برخه ده - بلکې په هغې کښې یا خو هغه د پښتون خان په حیثیت د چنل طبقاتي دور کمزوري غندلي او یا ئې د ملا په هغه عادتونو بد ویلي دي کوم چې د هغه د خانۍ په نشه کښې خارا چوي .

د الهام د اثر اکثر یکونه هم لکه د هغه نورو ملګرو د سیاسي پروپګنډې تر اغېزې لاندې راغلي دي . په هر قدم طبقاتي مبارزه ده په هره ساه د زیاد کینانو د بریالیتوب دعوی ده خو د نمونې په ډول د غه څو کرښې رانقل کوم .

"دا په غوځه توګه ویلی شو چې اوس زموږ د ټولنې د ژوندانه واقعیتونه انقلابي دي او نور ټول واقعیتونه په هم دې مرحله په هم دې شرائطو کښې له هم دې انقلابي ژوندانه څخه زیږیدلي دي - او رانیږي - زموږ شاعران او لیکوالان او د شاعرانو او لیکوالانو دوزنکي یعني کره کتونکي

هم باید خامخا انقلابي وي - انقلابي ادبیات د هر انقلاب
له هدفه سره سمون او تطابق لري - زمونږ د انقلاب هدف په
هیواد کښې د نوې ټولنې جوړونه ده - د داسې نوې ټولنې جوړونه
چې ټول اقتصادي ټولنیز او فرهنګي روابط په کښې مترقي او
انساني یعنې عادلانه وي - که اوس یو انقلابي شاعر او لیکوال
او نه شي کولای یا ونه غواړي چې د خپل چاپیریال ټولو پدیدو
او حقائقو ارتباط په عیني توګه احساس او بیان کړي انقلابي
کېدې نه شي . "

د اوږد اقتباس را نقل کول د تحقیق اصولو سره سمون نه خوري خو
د دغه نقل نه بغیر به د الهام د دوینې څرګندونه نیمګړې وه - او په دغه
حقله به رائې ډېره ښکاره شي -

کېدې شي چې د ثور د انقلاب راوسته د پاره ذکر شوي لیکوالو ډېرې
خوارۍ او تاوانونه کړي وي - د دغه انقلاب سره د دوئ ډېر ارمانونه تړلي
کېدې شي - خو په تقریر او ادب کښې فرق وي که د واړه دیو سیاسي کارکن یا
رهنما ولې نه وي .

دغه فرق د اجمل خټک او سلیمان لائق په لیکونو کښې لیدې کېدې شي .
بېشکه چې سیاسي او معاشي بدلونونه په ادب اثرات غورځوي خو
په ادب کښې ناڅاپه بدلون نه راځي - ځکه چې نه خو ادب په مشین کښې
تخلیق کیږي او نه په ډیمانډ جوړیږي - د یادو شوو ښاغلو لیکونکو سیاسي
تبصرې که بې ځایه ، اوږدې ، سپورې او غیر معیاري دي نو په دغه
حقله دعوې یې هم غلطي دي -

دکوم انقلاب نه پس چې دوئ ته د پښتو نظم توپیر څورونکي ښکاري
او کوم څوارې کښې ورته په دغه نظم کښې مرکزي حیثیت اخستونکي ښکاري
هغه توپیر او خوارې کښې په دغه ییکونو کښې په نظر نهٔ راځي. دسلیمان لائق
رانقل کړې شوي نظم " دزمکوغل " دانقلاب نه مخکښې لیکلې شوي
او خور شوې دې - د ورونو ملتونو داتفاق په حقله رانقل کړې شوي
نظم "افغان[۵۳]" نېټه نهٔ لري او هسې هم په دغه موضوع دانقلاب
نه وړاندې کې شمېره نظمونه لیکلې شوي دي . دانقلاب په دفاع کښې
د لیکلې په دول راوړونکي نظم[۵۴] هیڅ معیار نهٔ لري بلکې دغه دد دریمې
درجې د شاعرۍ معیار هم نهٔ لري .

په ادبي اثارو کښې د موضوع او فورم دلحاظه توپیر دیو مسلسل
ارتقائي عمل په نتیجه کښې راځي . په پښتو نظم کښې دغه توپیر څپل
ارتقائي تاریخ لري .

د ظلم خلاف د بغاوت جذبه او د خوارکښې داهمیت احساس په
پښتو شاعرۍ کښې دیوې اوږدې زمانې راهسې جوت دې .

دغسې ښاغلي لیکوالان په پښتو شعر کښې د سوسالستي ریالیزم
په پېژندنه کښې هم تېروتي دي . د افراط و تفریط سره په ترتیب او
انتخاب کښې هم غلط شوي دي .

په دغه اثارو کښې د سیاسي دله بازۍ سره سره ادبي دله بازي
هم شوې ده . دوست د ازاد نظم په حواله کښې یو څو نظم د لائق
"پیغام" یادوي او د اوسني انقلابي نظم په حقله د لائق او الفت
نظمونه رانقل کوي .

دغسې اکبرکړکر " د نوي یا ازاد شعر په باب ځوځېرې " تر سرخط لاندې

په څېل یېک کېنې په دغه حقله په افغانستان کېنې دسلېمان لائق دچونغر څه

نظمونه یادوي او ورپسې یې کاروان توفاني ، اسحاق ننګيال او عارف خزان یاد

کړي دي .

ښکله چې لائق دپښتو دېر لوئ شاعر دې خو په افغانستان کېنې نورو

شاعرانو هم آزاد او نوي شعرونه لیکلي دي او کهٔ نور څوک نظرانداز هم

کړې شي نو پهٔ دغه حقله د" جهاني "خدمات دا سے دي .

" چې منکر پرې اعتراض کولے نهٔ شي "

نو بناغلو لیکونکو پهٔ دغه لړکېنې د هغهٔ نوم اخستل هم مناسب نهٔ دي ګڼلي .

ددغه اثارو لیکونکي د احترام ور عالمان دي . د عالمي ادب پهٔ خصوصی ډول

دروسي او جرمني ادب ژوره مطالعه لري خو د پښتو ادب پهٔ حقله معلومات

یې نیمګړي دي .

دوست چې کله پهٔ نورو موضوعاتو لیکل کوي نو دځنې خبرې درنولو

د پاره پهٔ یوه ساه دروسي او جرمني لیکوالو ګڼ شمېره حوالې راوړي خو چې

کله دپښتو پهٔ آزاد شعر خبره کوي نو د حوالو د تحط سره مخامخ شي چې کله

" د پښتو دیکلي ادب " خبره راشي نو د مکتبونو ، سبکونو او میتودونو پهٔ

حقله هېڅ کوټلے او بنیادي معلومات څرګند نهٔ کړې شي . چې کله دیادونے

ورکتابونو فهرست رانقل کوي . نو د سید رسول رسا " ادبي تنقید " د

پښتو اشعار پهٔ باب لیکلې یاد کړي او د سحر یوسفزي " ادب څهٔ دے "

ته " ادب څهٔ شي دي " او وایې او د ناول ډرامې او انسانې پهٔ باب څېړنې

یې وبلي . حالانکې د رسا ذکر شوې اثر د تنقید د تعریف اهمیت او

ضرورت په حقله دي - د"سحر" یاد شوی ټیک د ادب ، تنقید ، ناول ، ډرامې او افسانې تعریفونه لري -

څو ! نه په دغه حقله او نه په بله څه موضوع څیړنه لري.

دغسې چې سوسالستي ریالېزم د پېژندګلو او پښتو شعر کښې په ځنبو ځنبنانو بحث کوي - نو د دغه مهمې موضوع د پېژندګلو او په دغه حقله مور پښتو ادب کښې د ځنبو ځنبنانو رابرسېره کولو په ځای د ځېل کتاب ځکلس ځونه او اته کرښې سیاسي تبصرې ، ادبي تاریخ د تنظیمونو او مجلو نومونو ته سپارلي - او په اخري اتو کرښو کښې د لرو پښتنو په ادبیاتو کښې د استفادې ریالېزم تر څنګه سوسالستي ریالېزم پوره وده کونکي یادوي- د دغه ریالېزم مشهور اځوډګران سیف الرحمن سلیم ، سعدالله جان برق قلندر مومند ، فضل حق شیدا او رحمت شاه سائل کښي -

دغه نومونه په ځای څو په دغه حقله د قمر راهي ، اندېښ شمس القمر ډاکټر امین الحق ، محمد اقبال اقبال ، عبدالواحد قلندر ، بشرنوید ، ډاکټر خالق زیار ، شېرعلي باچا ، ډاکټر اسرار ، سلیم راز ، ودود مشنغري او خیبر اپریدي غونډې مشهور او ثقه ترقي پسند نه یادول د پښتو ادب په حقله د لیکوال د معلوماتو کمي په ځبنه کوي -

زه یو ځل بیا وایم چې دوست عالم فاضل لیکوال دے خو سرے څه وېلي شي چې هغوي ځېل ذکر شوي ټیک چې د کتاب اخري ټیک هم دي په یو داسې شعر ختمول مناسب ګڼلي دي کوم چې نه درست رانقل شوي او نه دا هغه شاعر دي څوک چې دوست یاد کړي دي -

دوست ورته د سائل شعر وېلي دي او څه داسې ئې رانقل

کړې دي . ے

چې هر لوخړ موپکښې پټ شي او هر وُبدي پکښې مور شي
خدایه څهٔ کفر بهٔ وشي کهٔ یو داسې جهان جوړ شي

نو دغه شعر د تجمل الحسن قائل تخلیق دې او څهٔ دار رنګ دې . ے

چې هر تږي پکښې وخښي او هر وږي پکښې موړ شي
مُلا څهٔ کفر بهٔ اوشي کهٔ یو داسې نظام جوړ شي

پهٔ هم دغه رنګ یو مضمون " د دري پښتو ژبو پهٔ ادبیاتو کښې د سترو سوسالیتي انقلاب اغېزه" کښې د اکبر کرکر نه هم دغه رنګ تېر وتلې شوې دي . پهٔ دغه حقله چې هغهٔ کوم اثار او اشعار وړومبي اغیزمن یادوي . هغه د خدائي خدمتګارو لیکوالو او شاعرانو اصلاحي لیکونه دي .

د ماسټر کریم افسانې او افسانوي لیکونو د ذکر شوې اغېزې په ځائې د اصلاحي تحریک اغېزه ګڼله کړې ده . ماسټر کریم د میکسم ګورکي پهٔ ځائې د ټالسټائي رنګ اخستې دې . دغه بنا غلي چې د ملّي ازادۍ سره طبقاتي درځ را یو ځائې کوي .

نو پهٔ دغه حقله د هشنغر ادبي ټولنې خدمات د ستائنې وړ یادوي او د دغه ټولنې له خوا د تاج محمد خاموش خور شوې دیوان ستائي او هغه د تېز بېدار طبقاتي شعور ثبتن یادوي .

د ذکر شوې ټولنې خدمات پهٔ ځل ځای خو د پښتو ادبي ټولنو پهٔ تاریخ کښې تر ټولو مهم کردار اولسي ادبي جرګې ترسره کړې دې . د صنوبر حسین کاکاجي په رهنمائي کښې د دغه اداري روزلي لیکوال پهٔ پښتو ادب کښې د تحقیق ، تنقید او مترقي قومي شاعري سرخېل دي .

دوست محمد خان کامل ، حمزه شنواري ، افضل ټکښ ، قلندر مومند ، قمر راهي سیف الرحمن سلیم ، ډاکټر محمد اعظم اعظم او نور ددغه جرګې : په جرګو کښې مشران شوي دي . ددې نه پس نورې داسې جرګې او ټولنې جوړې شوي دي چې متوقي ادب ته يې ډېر خدمت ورکړي دي . نو ښاغلي ليکوال دهغې هیڅ ذکر نهٔ دې کړي او دکومې ټولنې خدمات چې يې ستائیلي نو دهغې هم صرف یو کتاب یاد کړې . حالانکې یاده شوې ټولنه نور اثار هم لري . هغه چې په کوم دیوان د دیوان د خالق شعوري بېداري ستائیلې ده . دغسې کتابونه په پښتو کښې نور هم ډېر دي .

په دغسې کتابونو کښې د ډېرې ستائینې ور د ابرار باچا "غریب انډم" دې . هسې کهٔ په دغه موضوع هر څوک لیکي او د اجمل خټک "دغېرت چغه" د قلندر مومند "ګجرے" "صباون" د رحمت شاه سائل " د ویرې په چم کښې وار د نغمو دې " د سلیمان لائق کیب دي ، د نور محمد ترکی " د بنګ مسافری" (ناول) او د مردان نه خورېدونکې " قند " مجله په نظر کښې اونهٔ لري . نو ددغه موضوع سره بهٔ انصاف اونهٔ کړې شي .

دګوګو دیاد شوي اټیوبل یک " ډېرګنتو دروان تحفه " هم نیمګړے او سرسري یک دې . داولسي شاعرۍ خاصکر " لنډۍ " په حقله دغه یک په دغه حقله د نوي معلوماتو د نشتوالي سره په زړو معلوماتو هم ناپوره دې .

دغسې "د نوي یا آزاد شعر په باب څو خبرې " هم نیمګړې او ناپوره دي . لیکونکي "د آزاد او نوي شعر ترمېنځه تمیز نهٔ دې کړې خو په افغانستان کښې یواځې د سلیمان لائق د چونص څو نظمونه په دغه لړ کښې د شمیر قابل

یادوي نو ځکه اندازه کېدې شي چې لیکوال د ازاد نظم په حقله غږېږي .

په لره پښتونخوا کښې چې د دغه رنګ شعر د لیکښانو کوم فهرست هغه تیار کړي دی . په دوی کښې د فضل محمود مخفي او عبدالمالک فدا نه تر عبدالله جان اسیر او فضل حق شیدا پورې یواځې سید رسول رسا څو آزاد نظمونه لیکلي دي . بلکې سمندر خان سمندر خو ډېر زیات پابند پاتې شوی دی. په ورپسې نسل کښې چې کوم نومونه یاد شوي دي په دوی کښې یواځې قلندر مومند یو نظم نیم ویلی دی او ایوب صابر په مستقله توګه ځان آزاد ساتلی دی . په دغه حقله هاشم بابر تر ټولو زیات لیکونه کړي دي او چاپ اثار هم لري خو لیکوال یې ذکر نه دی کړی . او دا خو به لیکونکي ته معلومه وي چې په کوم دلیل مخفي ، فدا ، فضل احمد غر ، محمد اکبر خادم ، عبدالاکبرخان اکبر او عبد الخالق خلیق د دغه نوي شعر لیکښان دي خو ګل باچا الفت ، بېنوا او رښتین په اخري صف کښې د ودرېدو جوګه هم نه دي .

د دغه ځینو کمو او کمزورو ( که زه خپلې کم علمۍ ته ورېسته نه یم ) باوجود هم دغه درې واړه اثار د ستاینې وړ دي .

د ډاکټر اسرار کتاب د خپل اسلوب او طرز بیان له کبله د پښتو تنقیدي اثارو کښې تر ټولو نوی اثر دی . ډاکټر اسرار یواځې د تکل استاد نه دی عالم فاضل هم دی او د خبرې کولو په هنر هم پوهېږي . د تکل په ژبه تنقید د هغه شناخت دی .

هغه پخپلو اولسو تکلونو کښې د پښتو لیکوالو د ځینو دوېو او چاپي اثارو جاج اخستی دی . په خندا خندا کښې یې د کار خبرې کړي دي په

ټوټو ټوټو کښې د مطلب ځایونه پهٔ تخمینه کړي دي.

کهٔ د چا د تخلیق یوه د ګاونډي پولې ته اړمه شوې ده او کهٔ چا پهٔ خپل کند کښې پردې ټوټه نګولې وه نو ډاکټر پرې غبرګ کړې دي نو پهٔ "جواب" کښې د سائل د آواز پهٔ رعب کښې ښکاري.



# بېلګې

(۱) جمیل جالبی - ایلیٹ کے مضامین - سنگ میل پبلی کیشنز - لاهور - ص - ۱۳

(۲) پروفیسر کلیم احمد : تنقید اور ادبی تنقید ، مه نیمروز ، کراچی ، اپریل مئی ۱۹۶۹ء

(۳) آل احمد سرور : تنقید کیا ہے ، تنقیدی نظریات ، مرتبه ، احتشام حسین
عشرت پبلشنگ هاوس لاهور ، ۱۹۶۵ء مخ ۲۰۵

(۴) سید محمد عبدالله ، تحقیق و تنقید ، نیا دور ع ۵-۶ کراچی ۱۹۵۶ء

(۵) انټر نیشنل ډکشنری او انګلش لینګویج دویم ایډیشن -

(۶) سید رسول رسا : ارمغان خوشحال ، پښتو اکیډمي پېښور مخ ۵۴۶

(۷) ایضاً ———— مخ ۶۷

(۸) عبدالعظیم رانړیزی : دیوان عبدالعظیم (د ظفرالله خان ظفر په زیار)

(۹)

(۱۰) نکولا بولو : د فرانس نوموړی شاعر او طنز نګار تېر شوی - په کال ۱۶۷۴ کښې یې د "فن شاعری" په نوم یو منظوم تنقیدی شاهکار لیکلی دی - په دغه کتاب کښې وړاندې کړے شوي تصورات راوړي دي - نو لیکونکی په خپل علمی توان او مشاهده د خپل وخت د حالاتو په سمون کړي دي - په دغه لیک کښې هغه شاعری پیدائشے صلاحیت بللی دي - خو ښهٔ شاعری د پاره ئې د عقل شعور ، اعلی

خیالاتو، سوچ، فکرنوي او معیاري ژبې، سنجید ګی، احتیاط، صبر او تحمل صلاحیتونه ضروري ګڼل شوي دي او دا ئې هم وړاندې کړې ده چې شاعري هغه فن دے چې د سبق او خراب ترمنځه صلحه نه مني۔ هغه دا هم ویلي دي چې د شاعری مقصد د دولت په ځائے لافاني شهرت ګټل پکار دي۔

(۱۱) نور دین : د نوره دین چاربیتې، د نصرالله خان نصر په زیار شاهین برقي پریس پېښور ۱۹۵۶ء

(۱۲) میاں تقویم الحق کاکاخیل : مقدمه د مخزن، پښتو اکیډمي پېښور۔

(۱۳) LEGOUIS AND CAZAMIANS هسټری او انګلش لټریچر نولسم ایډیشن جے۔ ایم ډونل اینډ سنز لیمټډ ۱۹۸۷ء دغه کتاب دویمه برخه فرانسیسي پوهان EMLLE LEGOUIS لیکلي ده او فرانسیسي نه انګریزي ته اړولې ده۔ ورستۍ برخه د کال ۱۶۶۰ نه تر کال ۱۹۷۰ پورې RAMOND LAS VERG NAS او LOUIS CAZAMTAN لیک دي۔ د نوي ایډیشن ضمیمه DONALD DAVIE لیکلي ده۔ د انګریزي ادب د ارتقائي سفر او مختلفو دورو په حقله دغه کتاب په ټوله دنیا کښې مستند منلي شي۔

(۱۴) میاں تقویم الحق کاکاخیل : مقدمه د دیوان علیخان۔ پېښور چاپ

(۱۵) خوشحال خان خټک : دستارنامه، پېښور، رومي مخ۔

(۱۶) KIM BALL YOUNG RAY MOND W. MACK SOCIOLOGY AND SOCIAL LIFE AMERICAN BOOKS NEW YORK-P-8

(۱۷) جمیل جالبی : ارسطو سے ایلیٹ تک، نیشنل بک فاونڈیشن۔ مخ ۲۶۴

# بېلګې


(۱) احمد علی کهزاد : دافغانستان پخواني تاریخ ، ژباړنه ، محمد یونس مزاد
عتیق الله معروف ، غلام جیلاني جلالي ـ قیام الدین خادم
مخ ۴۵ ، ۴۳ ، ۴۴ ، ۱۷۷ ، ۱۷۸ ، ۱۹۴ ، ۸۱-۱۸۲ ، ۱۸۳ ، ۱۸۴ مخونه افغانستان .

(۲) ډاکټر اقبال نسیم خټک : د رنګ وبو قافله ، پښتون سریزه
۲۳ - ۳۳۷ - ۳۴۲ - ۳۴۳ - ۳۴۲ - ۲۴۳ - ۳۴۳ - ۳۲۵ — مخونه

(۳) م - ر - شفق : د قلندر مومند فن او شخصیت ، پښتو ادبي سوسائټي اسلام آباد
۵۸ - ۹۰ - ۴۶ - ۴۹ - ۵۰ - ۵۱ - ۵۴ - ۲۷ مخونه

(۴) همیش خلیل :- تول پارسنګ پښتو د

(۵) پروفیسر سعید الدین احمد ډار :- تحقیق میں حواشی ، حواله جات اور اقتباسات

(۶) تحقیق اور اصول وضع اصطلاحات پر منتخب مقالات ،
مرتبه اعجاز راهي
مقتدره قومي زبان اسلام آباد مخونه ۱۳۴ ، ۱۴۶

(۷) عبد الرازق قریشي ، فن تحقیق ، مقاله کی تسوید ، موضوع کی جانچ پرکھ -
اردو میں اصول - مرتبه ، ډاکټر سلطان بخش -
مقتدره قومي زبان اسلام آباد

(۸) ډاکټر تنویر احمد علوي . متن او روایت متن ، تنقید متن ،
مقتدره قومي زبان اسلام آباد .

(۹) زلمی هېوادمل :- د متن د څېړنې میتودولوژي (تالیف وترجمه) تقریظ[۱]

(۱۰) محمد صدیق روهي دافغانستان د علومو اکاډمي افغانستان
تقریظ[۲] معتمد جنتي شنواري .

(۱۱) صدیق الله رښتین :- ادبي او تاریخي سمونې، یونیورستي بک ایجنسي پېښور مخ ۶۹ - ۸۹ - ۹۵ - ۹۶ - ۱۰۰ - ۱۹۰ - ۱۹۱ - مخونه

(۱۲) جیب الله :- دیوان حبیب - سریزه - سمون او فهرستونه، عارف غروال دافغانستان دعلومو اکادمي - افغانستان -

(۱۳) ارباب سکندرخان خلیل :- ژورفکرونه پېښور مخ ۳۷ - ۴۴ - ۹۸ - ۹۹ - ۱۰۰ - ۱۰۱ مخونه -

(۱۴) زلمی هیوادمل :- دکره کتنې دولونه (تالیف او ترجمه)

دافغانستان دلیکوالو انجمن کابل مخ ۱۰

(۱۵) جیب الله رفیع :- د پښتو کتاب بتود، افغانستان

زلمی هیوادمل . یادشوی کتاب مخونه ۱۶، ۲۲، ۲۸

(۱۶) دوست شنواري :- دادب دتیوري اساسونه

دولتي مطبوعه کابل مخ ۲۰

(۱۷) محمد رحیم الهام :- ادبي مسألې (تالیف او ترجمه)

دافغانستان دلیکوالو انجمن کابل مخ ۸۲

(۱۸) اکبر کرگر نحو ادبي یادونې (تالیف او ترجمه)

دافغانستان دلیکوالو انجمن - کابل مخ

(۱۹) دوست شنواري :- یادشوی اثر مخ ۱۱

ایضاً مخ ۳۲

ایضاً مخ ۳۱۸

(۲۰) رحیم الهام :- یادشوی اثر مخونه ۶۷ - ۶۸

(۲۱) دوست شنواري :- یادشوی اثر مخ ۳۲۷



# د لیکوال پېژند ګلو

نوم او تخلص : صاحب شاه صابر

د زیږیدو نیټه : ۹ - ۳ - ۱۹۵۶

د زیږیدو ځائے :- سخاکوټ ملاکنډ ایجنسی

تعلیم : ایم ، اے پښتو ، ایم ، اے اُردو ، ایم
اے سیاسیات ، ایم ، فل

پی - ایچ - ډی ریسرچ فلو پښتو دیپارټمنټ
پیښور پوهنتون -

# د لیکوال آثار

۱- تکل شاعری : چاپ

۲- واوري او ګلونه ( افسانې ) چاپ

۳- پښتو ادب کښې تحقیق او تنقید ( هم دا اثر )

۴- خوبونه ( شاعري ) ، چاپ ته تیار -

۵- تنقید او تنقید دولونه " "

۶- د تنقید تاریخ - " "

۷- پښتو ټپه او پښتانه " "

۸- رڼا او رنګونه ( مقالې ) " "

۹- په پښتو شاعری کښې تولنیز مافیت
( ایم ، فل مقاله ) چاپ ته تیار -